







# له ناکامۍ یې زده کړه!

اروا پوهنه


لیکواله

سلوی العضیدان

ژباړونکی

ظاهر عمار




| شمېره | عنوان | مخ |
|---|---|---|

| شمېره | عنوان | مخ |
|---|---|---|

شمېره عنوان مخ

شمېره عنوان مخ

# لړلیک

# د خپرندوی یادښت

ناکامي څه شی ده؟ انسان ولې له ناکامۍ سره مخ کېږي؟ له ناکامۍ د ځان ژغورلو لارې چارې کومې دي؟ ایا تر ناکامېدو وروسته لاس تر زنې کېناستل مناسبه چاره ده؟ انسان څنګه له خپلې ناکامۍ د یوه بالقوه ځواک په توګه کار اخیستی شي؟ ولې باید ناکامي د بریا زېری وبولو؟ دا او دې ته ورته پوښتنې په دې کتاب کې ځواب شوې.

ګندهارا خپرندویه ټولنه ویاړي چې د خپلو خپرنیزو خدمتونو په لړ کې دا ځل د روزنیزې ارواپوهنې دا کتاب د درنو لوستونکو مخې ته ږدي.

له لویه ربه غواړو چې دا هڅه مو په خپل دربار کې قبوله او له روانې پلوه زموږ د ځورېدلیو هېوادوالو د رنځ دوا یې دې کړي، امین.

ګندهارا خپرندویه ټولنه

پېښور

## ارواپوهنه د شخصيت جوړونې اړتيا

د دريېمې نړۍ د هېوادونو يوه تر ټولو لويه ستونزه د باور وړ شخصيتونو نه شتون دی، د حکومت د چارواکو او ولس ترمنځ واټن دی، د کاذبو شخصيتونو وجود دی، د بې شخصيته زورواکو د شتون زياتوالی دی. ارواپوهنه مو د شخصيتونو پېژندنې او جوړونې ته را بلې، شخصيت چې ستاسو د افکارو، کړنو، عقايدو او باورونو ټولګه ده، د ښه شخصيت د تر لاسه کولو لپاره د تفکر، تعقل او بالاخره د اروپوهنې په اړه کره او سمو معلوماتو ته لاسرسی اړين دی.

زموږ د ګڼو ناروغيو لامل زموږ د ژوند چاپېريال دی، په وروسته پاتې هېوادونو کې له ډېرو نورو اسبابو سره يو ځای، په ټولنه کې د شته بې باورۍ له امله ګڼې اروايي ناروغۍ را منځ ته کېږي. د هاضمې د جهاز ناروغۍ (د معدې مختلفې ناروغۍ)، لوړ روحي فشار، اروايي نارامي، د شخصيتونو کمښت، د کمترۍ احساس، روحي فشار او ژور خپګان چې دا ټول بيا د عمر د کچې د ټيټوالي سبب ګرځي او دې ته ورته په لسګونو نورې ستونزې د دريېمې نړۍ د هېوادونو د وګړو د ورځنې ژوند ملګرتيا کوي.

له بده مرغه افغانان د همداسې يوې بې باورۍ له امله ورځ تر بلې په نويو ناروغيو او ستونزو کې را ښکېل کېږي. د افغانانو د عمر منځنۍ کچه تر ۴۶ کالو پورې رسېږي چې د سيمې په کچه تر ټولو کم عمره انسانان دي. هغه ملتونه چې په ورته حالت کې وي او بيا د حکومت له ناپامۍ سره هم مخ وي، نو ورځ تر بلې يې ژوند مخ په خوړ روان وي. د دې ناوړه حالت ښه مثالونه د افريقا په لويه وچه کې د ګڼو هېوادونو ملتونه دي، لکه صوماليه، کانګو، سويلي سوډان او داسې نور.

خو هغه ملتونه چې د همدې ناروغیو پر وړاندې د حکومتونو بې باوره سترګو ته لاره نه څاري او خپله د خپلې ناروغۍ د درملنې لپاره لاس په کار کېږي، نه یواځې ځان د ناروغیو له بدو انظارو ژغوري، بلکې حکومت ته هم دا توان ورکوي چې په پښو ودرېږي. له خپل ملت څخه باور ترلاسه کړي او د یوې ښې راتلونکې لپاره لاس په کار شي.

الحمد لله افغان ملت د همداسې یوه تګلوري پر لوري مزل پیل کړی، ګران ظاهر عمار صیب یو له هغو افغان ځوانانو څخه دی چې د خپل ملت ژورو ناخوالو، د پردي تر شا خوروونکو اسبابو او د ژوند د بریاوو پر وړاندې د خنډونو (دېوالونو) په رنګولو او ماتولو کې برخه اخلي.

د افغان ملت شاوخوا ۷۵ سلنه ځوان کهول جوړوي چې د دې ځوانې انرژۍ پالنې او رغونې ته نه پام کولای شي افغانستان او په لویه کې ټول افغان ملت یو لوی ناورین ته سوق کړي چې اداره او کنترول به یې بیا ډېر سخت کار وي. د ځوانانو د روزنې لویه دنده د کورنیو پر غاړه ده، کورنۍ دي چې د ماشومانو په روزنه او پالنه کې تر بل هر چا ډېر اغېز لري. سره له دې چې ښوونځی، د ژوند چاپېریال، ملګري او داسې نور اړوند لاملونه هم پکې خپل خپل اغېز ښندلی شي. افغان کورنۍ باید د خپلې دندې او مسؤولیت په ارزښت پوه شي او د دې کار لپاره ښه وسیله د ارواپوهنې مطالعه او پرې پوهېدل دي.

اروا‌پوهنه په علمي توګه د انساني سلوک په هکله د زده کړې او احساساتو مطالعې ته ویل کېږي. اروا‌پوهنه د علومو یوه منظمه څانګه ده چې په ساینسي توګه د مغزو د کردار او فعالیتونو مطالعه پکې ترسره کېږي. د دې ترڅنګ په اروا‌پوهنه کې د ژوند ورځنۍ لارې چارې چې په انفرادي او یا ټولیزه توګه د ستونزو د حل او د مغزو پورې اړونده ناروغیو په تداوي کې ترې کار اخیستل کېږي، تر بحث لاندې نیسي.

نولسمه میلادي پېړۍ د اروا‌پوهنې د علم د پیل پېړۍ ګڼل کېږي. په ۱۸۷۹ میلادي کال د اروا‌پوهنې د علم زده کړه د یوه ځانګړې علم په

توګه پيل شوه، ځکه چې په دې کال الماني ارواپوه، ويلهم وونټ [1] په ځانګړې توګه يو لابراتوار د ارواپوهنې د زده کړې لپاره د لايپزيګ [2] په ښار کې تيار کړ، چېرته چې په لومړي ځل ارواپوهنه د يوه تحليلي علم په توګه تر مطالعې لاندې ونيول شوه.

وونټ د فلسفې د علم د (ځان پېژندنې) ځانګه له نويو تخنيکونو سره په نوموړي لابراتوار کې وه ازمويله، دغه ازماينبتونه يې د ارواپوهنې تر نامه لاندې راوستل. ځان پېژندنه [3] په فلسفه کې نېغ په نېغه د خپل زړه، فکر، خيال او اروا څېړنې او ځارنې ته ويل کېږي.

ارواپوهنه مختلفې ځانګې لري او عمار صيب د همدې پراخ علم د کلينکي مشورتي ارواپوهنې څخه موږ ته په زړه پورې مضامين را اخيستي دي. نيم په نيمه ارواپوهان د کلينکي او مشورتي ارواپوهنې په برخو کې کار کوي. کلينکي ارواپوهان د غير نورمال اخلاقو څېړنه، درملنه او مطالعه ترسره کوي، خو مشورتي ارواپوهان د ډېرو لومړنيو فردي يا ټولنيزو ستونزو په حل کې کوښښ کوي. په عمومي توګه، کوم کسان چې د مشورتي ارواپوهانو تر څېړنې لاندې وي، هغوی غير نورمال اخلاق لرونکي کسان نه ګڼل کېږي.

د انسانانو په ژوند کې له فطري اړتياوو څخه تر ټولو مهمه هغه د برياليتوب تنده ده. هغه انسانان چې په ژوند کې ځان ورته ناکامه ښکاري، پر بېلا بېلو ارواييي ناروغيو اخته کېږي.

له نېکه مرغه، عمار صيب د ارواپوهنې ارزښت ته په پام سره، ډېر ګټور اثر را ژباړلی دی. په دې کتاب کې د نورو ګټورو موضوعاتو ترڅنګ داسې مسايل مطرح شوي چې زموږ جګړه ځپلی ولس او ټولنه نېغ په نېغه ورسره لاس او ګرېوان ده، لکه له ناکامۍ سره مخ کېدل، هر څه ته د شک په سترګه کتل، بې باوري، د منفي فکر پالل، نهيلي، د شخصيت

1 Wilhelm Wundt (1832 - 1920)
2 Leipzig University, Leipzig, Germany
3 Introspection

د روزنې او ټوکېدا پر ورانديې خنډونه او نور.
په دې کتاب کې د دغو اروايي ستونزو لاملونه او د حل لارې په ګوته شوي دي. د کتاب يوه مهمه ځانګړتيا دا ده چې د اروا پوهنې هغه مسايل چې زموږ په دوديزه ټولنه کې تت او له علمي بحث او مطالعې څخه لرې پاتې شوي، په ډېره روانه او خوږه پښتو ژباړل شوي، نو ځکه له دې اثر څخه ځوانان او د هغوی کورنۍ په ډېره ښه توګه ګټه اخيستی شي. زه له دې امله عمار صيب ته مبارکي او کور وداني وايم او هيله ترې کوم چې د اروا پوهنې په دغه مهمه څانګه کې د خپلو ژباړو لړۍ لاپسې وغځوي او له همدې لارې خپل ولس ته لازيات ګټور خدمتونه ترسره کړي.
زما په اند که درانه لوستونکي وغواړي چې خپل متوازن او سالم شخصيت ته وده ورکړي او يا د دې لپاره چې له نورو خلکو او په ټوليزه توګه له خپلې ټولنې سره له اروايي پلوه ښه مرسته وکړي، د دې کتاب لوستل به ورسره زياته مرسته وکړي. په کتاب کې داسې مثالونه او د سترو شخصيتونو د ژوند کيسې را نغاړل شوي چې نېغ په نېغه د انسان پر اروا او د تفکر پر طرز اغېز ښندلی شي.
عمار صيب ته د داسې يوه ستر اثر د ژباړې مبارکي وايم او تاسو قدرمنو ته يې د لوستلو او لاربښوونو د عملي کولو توفيق له ستر ښتن څخه غواړم.

يا ربه توفيق

پوهنيار ډاکتر فيض محمد ځلاند
کابل پوهنتون، کابل ـ افغانستان
جنوري، درېيمه، ۲۰۱۵

# د لیکوالې سریزه

الحمدلله والصلاة والسلام علی رسول الله وآله واصحابه وسلم تسلیما کثیرا الی یوم الدین.

ډېر خلک رانه پوښتي چې ولې مې ځان تل د نهیلو او ناکامو خلکو په ستونزو او دردونو مشغول کړی وي او هڅه کوم چې د دوی په زړونو کې له نهیلۍ او ناکامۍ سره د مبارزې او ورته د نه تسلیمېدو روح پو کړم او ځیني داسې گومان کوي چې گواکې دا هڅې مې بې گټې دي!

پرېږدئ چې یوه خبره درته وکړم:

زه په دې باور یم، هر هغه کس چې د ناکامۍ په ځنځیرونو تړل شوی، په داخل کې یې داسې پټه خزانه شته چې کولای شي په پرله پسې هڅو، زیار او هیلې سره یې راوباسي. له قیمتي جواهرو او پرکېدونکو کانو یې خوند واخلي او د ناکامۍ پر شا تمبوونکی سلبي (منفي) ځواک پر بریا ته هڅوونکي ایجابي (مثبت) ځواک بدل کړي.

داسې مه بولئ چې گواکې وهم وهلې یم. زه ډاډمنه او باورې یم چې هېڅ انسان ناکامه نه زېږېږي او نه همداسې ناکامه پاتې کېږي، مگر هغه مهال چې په خپله یې وغواړي!

نو ای د ناکامۍ په ځنځیرونو تړل شویه! پوه شه زه باور لرم چې د الله تعالی په مرسته د بریا ترلاسه کولو توان لرې. غواړم یوه ژمنه راسره وکړې، کله چې دې دا کتاب ولوست، د خپل داخل په ژورو کې د پټې خزانې او گرد وهلې سپرغۍ پلټنه پیل ... بیا راپورته شې او په پوره باور نړۍ ته ووایې چې: زه بریالی یم. ناکامه نه یم، تر دې مخکې مې د ژوند په تجربو ځان صیقل کاوه نرخو بر پیاوړی او لا ډېر ثابت قدمی شم او حیرانوونکې بریا ترلاسه کړم!

گرانه لوستونکیه!

که د خپل داخل په ژورو کې دې دا خزانه ومونده، نو ما خبره کړه. زه باور لرم چې دا خزانه موندلی شې، نو همدا اوس یې په لټه کې شه!

ریښتیا هېر دې نه شي، لیک ته دی په تمه یم!

سلوی العضیدان

بسم الله الرحمن الرحیم



## د بریالیو سردار!

**پېژنئ يې؟!**

**هو، هغه محمد صلی الله علیه وسلم دی، هغه چې د پرېمانه کړاوونو له شتون سره سره يې ان خپله يوه ورخ هم تياره ونه بلله، بلکې د شپې توري تيارې يې د ايمان په ډيوو سره ځيرې او روښانه کړې. خپل ټول ژوند يې د قرآن آيتونو ته په هيله مندۍ سره ښکلی کړی و. له ناکامۍ سره يې مبارزه وکړه، بد فالي يې لرې وغورځوله او هېڅکله ناکامو او بد فالو خلکو ته تسليم نه شو.**

**لا دا چې:**

- مشرکينو د کعبې په شاوخوا کې (۳۶۰) بوتانو ته عبادت کاوه، خو دی بيا هم هيله من و.
- د کعبې په گرد چاپېر کې يې د مشرکينو بربنډ طوافونه، شراب ځښل او بوتانو ته د هغوی زارۍ ليدلې؛ خو بيا هم هيله من و.
- د مشرکينو له عقايدو له خورېدو، پر کمزورو د ظلمونو له ډېرېدو، د غلامانو د حقوقو له پايمالېدو، د نجونو له ژوندي ښخېدو او د هغوی له لوري د ده پر دعوت له رېشخند وهلو سره سره بيا هم هيله من و.
- هغه مهال هم هيله من و کله چې د کعبې دېوال ته نږدې خدای ته په سجده پروت و او مشرکينو يې پر څټ د اوښ لرى ورکېښنود.
- هغه تل هيله من و او خپل امت ته به يې د هغوی له کمزورتيا سره سره پر يهودو د بريا او غلبې زېرى ورکاوه او فرمايل به يې: «قيامت به تر هغې قايم نه شي ترڅو چې مسلمانان له يهودو

سره جنګېدلي نه وي. مسلمانان به هغوی وژني، تر دې چې یهودي به د تېږې او ونې شا ته ځان پټوي، نو هغه تېږه یا ونه به ناري کړي: ای مسلمانه، ای د الله تعالی بنده! دغه دی زما شا ته یهودي پټ دی، راشه او ویې وژنه. خو یوازې غرقد نومې ونه به مسلمان ته غږ نه کوي، ځکه غرقد د یهودو ونه ده.»

- هغه مهال هم هیله من و کله چې به یې د مکې په بطحاء نومې سیمه کې خپل یاران؛ بلال او عمار بن یاسر د مشرکینو له لوري د کړولو په حال کې لیدل، دا مهال به یې په ډاډه او خوږ زړه هغوی ته ویل:

«د یاسر کورنۍ صبر وکړئ، ستاسې ځای جنت دی.»

- هغه هیله من و، بشریت به یې جنت، نېکمرغۍ او حق ته راباله او خپل امت ته به یې د سختیو پر مهال د فتحو او بریاوو زېری ورکاوه.
- هغه مهال هم هیله من و کله چې یې خباب بن ارت رضي الله عنه ته وفرمایل:

«قسم په الله! الله تعالی خامخا خپل دین بشپړوي، تر دې چې یو کس به له صنعاء نه حضرموت ته د تلو پر مهال له الله تعالی پرته او پر خپلې رمې د لېوه له یرغل پرته له بل هېڅ شي نه وېرېږي؛ خو تاسې بیا هم تادي کوئ.»

## ۲ هیله ښنونکې پرېکړه!

معاصر ادیب مصطفی صادق الرافعي وایي:

«هغه څوک اصلاح غوښتونکی نه دی چې د تاریخ پاڼې فاسدې کړي، ځکه دا کار ساده او اسانه دی، ان ناپوهان یې هم کولای شي؛ ریښتینی اصلاح غوښتونکی هغه دی چې تاریخ تر ده وروسته د ده کړنه فاسده نه کړای شي.»

## ٣ هېڅ شی ناممکن نه دی!

ستر فرانسوي جنرال ناپلیون بوناپارټ به خپل ډېر وخت په جنګ جګړو کې تېراوه، د یوې جګړې پر مهال د الپ غرونو ته ورسېد، د هغه هدف تر غرونو هاخوا و، باید پرې اووښتی وای، خو ستونزه دا وه چې ده او لښکر ته یې له دې غرونو پورې وتل لویه ستونزه وه. د غرونو په لمن کې یوه بوډۍ ښځه اوسېده، ناپلیون ترې وپوښتل: له دې غرونو د پورې وتلو کومه لاره درته معلومه نه ده؟

بوډۍ یې پر پوښتنه وخندل او ویې ویل: دا کار ناممکن دی، ډېرو ناپوهو مېړنیو له دې غرونو د پورې وتلو پر مهال خپل ژوند له لاسه ورکړی، نو ستا خیر په همدې کې دی چې پر کومه لاره راغلی یې، په همغې بېرته ستون شې!

ناپلیون د بوډۍ په دې نهیلې کوونکې خبره همت له لاسه ور نه کړ، ځکه د هغه له نظره اصلا د «ناممکن» کلمې کومه معنا نه درلوده او نه یې پرې اعتراف کاوه، نو بوډۍ ته یې وویل: ستا خبرې لا ډېر زړور کړم، اوس نو په لا ډېر احتیاط او پاملرنې پلان جوړوم او تر هغې کرار نه کېنم چې له دې غرونو پورې نه وځم!

بوډۍ د ناپلیون زړورتیا او ځان باورۍ ته هکه پکه شوه او په دې الفاظو یې وستایه:

«په دې نړۍ کې ستا په څېر مېړنیو لپاره هېڅ شی ناممکن نه دی، ته خامخا په خپله هڅه کې بریالی کېږې!»

هماغه و چې ناپلیون په بریالیتوب سره له الپ غرونو پورې ووت.

- ناپلیون پر دې اعتراف نه کاوه چې ګواکې په نړۍ کې دې کوم ناممکن کار هم وي، ځکه هغه اصلاً په ناکامۍ باور نه درلود، نو ویې شوای کولای چې له غرونو پورې وځي. له همدې خایه ده چې وایو: هر انسان کولای شي چې د ناکامۍ له غرونو پورې وځي، که څه هم چې ډېر لوړ وي؛ خو یوازې په شرط چې د

«ناممکن» کلمه د خپل ذهن له پاڼې ورانه کړي او په کثافت دانۍ کې يې واچوي!

## ۴ د فکر وړ خبره...

موږ اصلاً له غرونو سره نه، بلکې له خپلو نفسونو سره مبارزه کوو!
(ايډموند هيلاري)
لومړنی هغه کس چې د ماونټ ايوريسټ غره څوکې ته ختلی و.

## ۵ لالهانده کم عقل!

هغه مهال چې «ويکتور سيربرياکوف» پنځلس کلن و، ښوونکي يې ورته وويل: ګومان نه کوم چې ته دې خپلې زده کړې پای ته ورسولای شې، نو ښه ده چې ښوونځی پرېږدې او د خپل ژوند پر مخ بېولو لپاره يو کسب زده کړې!

ويکتور د خپل ښوونکي نصيحت ومانه، ښوونځی يې پرېښود او د راتلونکو اوولسو کلونو په موده کې ترې يو داسې لالهانده ځوان جوړ شو چې ډېر ناشنا کارونه به يې ترسره کول. هغه ته په کوچنيوالي کې ويل شوي وو چې کم عقل دی، له همدې امله يې راتلونکي اوولس کلونه په پوره کم عقلتوب کې تېر کړل. کله چې دوه ديرش کلن شو، په ژوند کې يې يوه حېرانوونکې پېښه را منځ ته شوه، يوې ناڅاپې ارزونې ورونښوده چې نوموړی يو نابغه دی او د ځيرکتيا سنجونې د مقياس (IQ) له مخې يې د ځيرکتيا کچه (۱۶۱) درجې ده!

پوهېږې چې تر دې ارزونې وروسته څه وشول؟
په داسې کارونو يې پيل وکړ لکه نابغه ګان چې يې کوي، له همغه مهاله يې ډېر کتابونه وليکل، ځينې ناشنا ادبي پنځونې يې وکړې او يو بريالی سوداګر ترې جوړ شو. تر ټولو حېرانوونکی پرمختګ يې دا و چې د «مينسا» په نوم د ځيرکتيا سنجونې نړۍ والې ټولنې د رئيس په

توګه وتاکل شو. د «مینسا» د غړیتوب لپاره یوازینی شرط دا دی چې د ځیرکتیا کچه باید تر (۱۴۰) درجو کمه نه وي!

- د ویکتور کیسه مو دې لور ته پام را اړوي چې په خپله شاوخوا کې په هغو لالهاندو او تر سترګو پټو نابغه ګانو پسې وګرځو چې اوسمهال د ناکامانو او کم عقلانو په خبر چلند کوي، څکه له دوی هر یوه ته یوه ورځ د یوه چا له لوري ویل شوي چې ځیرک نه دی!
- ښکاره خبره ده چې ویکتور په ناڅاپي توګه اضافي پوهه ترلاسه نه کړه، بلکې حقیقت دا دی چې هغه په ناڅاپي توګه پر خپل ځان باور پیاوړی او زیات کړ، نو پایله همدا شوه چې تر پخوا ډېر فعال، پنځوونکی او بریالی ثابت شو. هغه چې کله خپل ځان ته په بله سترګه وکتل، کارونه یې هم په بل شکل پیل کړې، له همدې امله وه چې له پخوا سره په توپیر د بېلو پایلو په تمه شو او دا بیلې پایلې یې ترلاسه هم کړې.
- څکه نو ګرانه لوستونکیه! ته هم کولای شې چې ستا په اړه د نورو خلکو له ناسم قضاوت نه ځان ازاد او مختلف ثابت کړې، هغه قضاوت چې ته پرې باوري شوی یې، له امله یې دې خپل ارمانونه په خپل عقل کې ایسار کړي او د ناکامۍ حکم دې پرې کړې او دا څکه چې یوه چا درته ویلي چې ته ناکامه یې، یا به ناکامه شې او یا دا چې ناکامه شوی یې!

## ❻ ماتې مه منه!

کله چې له اډمېرال فارګوټ نه وپوښتل شول: ایا کله دې ځان ماتې ته تیار کړی؟

هغه په ځواب وویل: ثوک چې تر جګړې مخکې ځان ماتې ته تیار کړي، نیمه ماتې یې منلې!

## ٧ وړې اوبدونکې!

پلار یې داسې مهال وفات شو چې دی نهه کلن و، مور یې د خپل زوی روزنې ته ملا وتړله او د حدیثو د زده کړې لپاره یې جومات ته واستاوه. وایي د دې هلک مور به په خپل کار ځای کې وړې اوبدلې، یوه ورځ یې یو اوبدل شوی شی په لسو درهمو خرڅ کړ، خپل زوی سفیان ثوري یې را وغوښت او ورته یې وویل: ای سفیانه! دا لس درهمه درسره واخله او په جومات کې پرې حدیث زده کړه، نو که دې ولیدل چې ترلاسه کړې علم دې پر عقل، زړه او عمل تاثیر کړی، بیا راشه چې لس نور درهمه هم درکړم چې لا نور علم پرې زده کړې او که دې ولیدل چې ستا پر عقل، زړه او عمل یې تاثیر نه دی کړی، نو ګرانه زویه! له دې ډول علم نه تېر شه، ځکه علم یوازې هغو خلکو ته ځان په لاس ورکوي او ملګرتیا ورسره کوي چې اخلاص او تلوسه پکې وي.

- په ریښتیا چې دې حکیمې مور د ځان روزنې په اړه خپل زوی سفیان ته حیرانوونکې نصیحت وکړ چې معنا یې دا وه: هومره چې په علم او عمل کې د بریالیتوب لپاره هڅه او خواري اړینه ده، هومره پکې خیرکتیا او نابغه توب ته اړتیا نشته. هغې چې کله د خپل زوی روح ته دا نصیحت ور پو کړ، هدف یې دا و چې لاره ورته لنډه کړي او پر دې یې وپوهوي چې که چېرې په خپلو زده کړو کې په بریا پوره باوري نه وي، ټولې هڅې یې بېځایه دي، نو خیر یې په همدې کې دی چې سر له اوسه له زده کړو تېر شي، ځکه د دې کار پایله هسې هم ناکامي ده!

ښه نو د وړې اوبدونکې په حکیمانه خبره پوه شوې؟! هیله لرم پوه شوی به یې!

## ۸ د ژوند مبارزې

د ژوند په مبارزو کې بریا د هغو خلکو نه نصیب کېږي چې ډېر پیاوړي یا چالاکه وي، بلکې هغه خلک ژر تر ژره بریالي کېږي چې د بریا په ترلاسه کولو باور ولري!

## ۹ له ناکامۍ تر ولسمشرۍ!

«جون جونز» وايي: په «بارامونت» سینمایي شرکت کې مې د کیسو د بیا کتنې او ارزونې په څانګه کې د محررۍ په توګه کار کاوه، یوه ورځ د همدې څانګې رئیس «اډولف زوکر» خپل دفتر ته ور وبللم، د خط یو پاکټ یې راکړ او ویې ویل: دا د «روزولټ» کورنۍ یوه کس رالېږلی، یوه کیسه پکې ده، دوی غواړي زموږ په شرکت یې وپلوري. کله چې بې پاکټ را واخیست، ما ور وکتل چې پرې لیکل شوي وو: د فرانکلن روزولټ له لوري د بارامونت شرکت ته!

ما مې له رئیس نه وپوښتل: څنګه، کیسه یې درته په زړه پورې وه؟
اوړې یې پورته وغورځولې او ویې ویل: نه، د کیسې موضوع یې د یوه بریالي فلم لپاره مناسبه نه ده!

ما ترې وپوښتل: ښه نو ما ته څه حکم کوی؟

ویې ویل: د روزولټ کورنۍ ته په ډېر ارزښت قایل یم، له همدې امله ښایي چې زموږ له لوري د هغوی د کیسې ردول په پوره مهارت سره وي.
جونز وايي: په هماغه ماښام مې له روزولټ سره تلیفوني اړیکه ټینګه کړه او تر ځان پېژندنې وروسته مې ورته وویل: غواړم ستاسې د را استول شوې کیسې په اړه خبرې درسره وکړم. په خورا لېوالتیا یې ومنله او ویې ویل: په ټیلیفون نه، هیله ده مخامخ خبرې سره وکړو، ممکنه ده چې سبا ته له موږ سره چای وڅښې؟ او بیا یې د خپل کور ادرس راکړ.
زه د سبا ورځې غرمه مهال ورغلم او کله چې ... مو چای وڅښه، په خورا

لېوالتيا يې وپوښتل: زوکړ زما د کيسې په اړه څه نظر لري؟
د روزولټ کورنۍ د ټولو غړو سترګې زما لور ته را واوښتې، د هغوی په سترګو کې مې باور او پر خپلې کورنۍ وياړ ولید، که رېښتيا ووايم، ښکاره ځواب مې ور نه کړ او د دې اړتيا مې احساس کړه چې نن ورځ د ځواب نه ويلو لپاره يو عذر پيدا کړم، تر دې چې تر درېيو راتلونکو مياشتو پورې به مې پرله پسې عذرونه جوړول او کله چې له عذرونو او دروغ ويلو ستړې شوم، ښکاره مې ورته وويل چې کيسه يې رد شوې ده!

د دې خبر په اورېدو سخت ودردېد او بيا چې ما يې د غم سپکولو لپاره څومره عذرونه او ډول ډول پاليسۍ جوړې کړې، ټولې ناکامې شوې، نو همدا وه چې له نوموړې کورنۍ سره مې اړيکې پرې کړې!
په دې توګه د پنځلسو کالو تر تېرېدو وروسته يوه ورځ په سپينه مانۍ کې د امريکا د نوي ولسمشر روزلټ په وياړ جوړې شوې غونډې ته وبلل شوم، هلته يې راته وويل: ته جونز نه يې؟!
ما وويل: هو ښاغليه، زه يم!
پر شونډو يې اوږده موسکا خپره شوه، بيا يې وويل: هغه کيسه خو دې په ياد ده چې بارامونټ شرکت ته مې ور استولې وه؟! که رېښتيا ووايم، هغه مهال چې يې د رد کېدو په اړه خبر شوم، دا مې په ژوند کې تر ټولو سخته شېبه وه.
ما وويل: خو زه پوره باور لرم چې بارامونټ شرکت به اوس ستاسې د کيسې په ردولو پښېمانه وي.
ويې ويل: کېدای شي هغوی پښېمانه وي، خو ما له هغې پېښې لوی درس واخيست او هغه دا چې ناکامي که څه هم راتلونکې د انسان په سترګو کې تور ښکاره کړي، دا هېڅکله په دې معنا نه ده چې د دې سړي ژوند پای ته ورسېد. پر ناکامۍ د غلبې تر ټولو ښه لاره دا ده چې ناکامي او هر هغه څه چې ورپورې اړه لري، هېر کړو او له دې باور سره بيا ځلې هڅې پيل کړو چې حتماً ...

ما وویل: فکر کوم ستاسې سیاسي بریا د همدې نظریې د صحت دلیل دی! موسکی شو او ویې ویل: ته رښتیا همداسې فکر کوې؟! خو هغه څه چې هېڅ شک په کې نشته دا دي چې که بارامونت شرکت زما هغه کیسه منلې وای، نو اوس به ما او تا دلته په سپینه ماڼۍ کې خبرې نه کولای!!!

## ۱۰ سکوندېکه!

ښایي پر دې خبره پوره باور ولرو چې د نورو له لوري پر موږ د ناکامۍ شوې پرېکړه په دې معنا نه ده چې هر څه مو پای ته ورسېدل، بلکې کېدای شي همدا پرېکړه د هغه څه ترلاسه کولو پیل وي چې هیله یې لرو، خو مهمه دا ده چې لومړی پر الله تعالی او بیا پر خپلې وړتیا باور ولرو ترڅو د ناکامۍ اوږدې جامې له تنه وباسو او د بریا هغو لمر څرکونو ته ښه راغلاست ووایو چې په خورا بې صبرۍ سره زموږ خوا ته را درومي!

## ۱۱ په ځېږه مې مه وهه!

په شپاړسمه میلادي پېړۍ کې د جرمني په یوه کلي کې یو هلک اوسېده، دا هلک «جاوس» نومېده، ډېر ځیرک شاګرد و، خو د ده ځیرکتیا له نورو سره په توپیر فوق العاده وه. د ښوونځي د ریاضیاتو ښوونکي چې به کله هم له زده کوونکو پوښتنه وکړه، جاوس به سمدستي ځوابوله، په دې توګه به نور زده کوونکي د ښوونکي پوښتنې ته له ځواب ورکولو او په اړه یې له فکر کولو محروم پاتې کېدل.

یو ځل ترې ښوونکي یوه سخته پوښتنه وکړه، جاوس ډېر ژر ځواب ورکړ، دې کار یې ښوونکی نور هم په غوسه کړ او دا ځل یې بیخي مغلقه پوښتنه ترې وکړه، په دې ډول:

له یوه نه تر سلو پورې عددونو د جمعې نتیجه راته پیدا کړه!

ښوونکي غوښتل په دې توګه نورو زده کوونکو ته هم د پوښتنې ځوابولو لاره هواره کړي. جاوس تر پنځو دقيقو وروسته په لوړ غږ وويل: (۵۰،۵۰) ښوونکي پر مخ په خپېره وواهه او ويې ويل: تهوکې راپورې کوې؟! محاسبې دې څه شوې؟!

جاوس وويل: ما معلومه کړه چې د (۱) او (۹۹) ترمنځ اړيکه شته او د هغې مجموعه (۱۰۰) کېږي، په همدې ډول د (۹۸) او (۲)، (۹۷) او (۳) او د (۵۱) او (۴۹) ترمنځ هم اړيکه شته چې (۱۰۰) کېږي، ځکه نو پوه شوم چې د اعدادو (۵۰) جوړې مې موندلې دي!

په دې توګه مې د دې پوښتنې د حل لپاره د رياضياتو دا قانون وموند: ۲/n (1+n) داسې چې n = عدد دی او په دې توګه پايله (۵۰ ۵۰) راووته! ښوونکی د جاوس فوق العاده ځيرکتيا ته ډېر حيران شو، خو پر دې نه پوهېده چې دا ماشوم به يې لوی عالم «فريدريک جاوس» په څېر وځلي! هو، د بشر په تاريخ کې د رياضياتو له درېيو لويو علماوو څخه يو!

- که څه هم چې دردوونکي څپېړې دې خوړلې وي، بيا هم د خپل حساب عمليې پوره کړه او دې ته مه ګوره چې غومبورې دې پړسېدلې!
- هو، د خپل ژوند له قاموس نه د ناکامۍ ټکی لرې کړه، خپله اراده له خپل هدف سره يو ځای کړه، خپل هدفونه په ورو تولې هغه وسوسې په کلک سوک ووهه چې ستا پر عقل بې سيوري غوړولی ترڅو د بريا له رينښتينې پايلې خوند واخلې!

## ۱۳ بيا ځلې کوښښ وکړه!

- خينې خلک له دې امله بريالي کېږي چې بخت يې ښه وي، خو اکثره بريالي خلک له دې امله بريالي شوي چې د برياليتوب اراده يې کړې وه. (هنري فان ديک)

- د مناسبو شرایطو انتظار مه کوه، ځکه ته خپله هغه څوک یې چې باید مناسب شرایط را منځ ته کړې. (ګوګریین)
- زموږ لویه کمزورتیا تسلیمېدل دي او بریالیتوب ته تر ټولو لنډه لاره دا ده چې بیا ځلې کوښښ وکړې. (توماس اډیسن)
- موږ د ناکامۍ د احتمالاتو په اړه نه، بلکې د بریالیتوب د احتمالاتو په اړه فکر کوو. (ملکه ویکتوریا)
- بریالیتوب له یوې ماتې بلې ته د انتقال ځواک دی، پرته له دې چې خپله تلوسه له لاسه ورکړې. (چرچل)

## ۱۳ بې لاس و پښو بریالی!

بې پښو دی، بې لاسو دی، بلکې یوازې د انساني جسم پورتنۍ برخه ده... کېدای شي ډېر خلک دا ونه مني چې په دې صفاتو موصوف یو ژوندی انسان به هم وي. ښه، دا چې څوک یې مني که نه، بېله خبره ده، خو اوسمهال په نړۍ کې همداسې یو بریالی ځوان شته چې په خپلې وړتیا یې وکولای شول د دوو نړۍ والو شرکتونو رئیس شي!

«نیک نیکولاس» یو استرالیایي ځوان دی، هغه په یوه بې وزله استرالیایي کورنۍ کې د معذورۍ په حالت کې وزېږېد، خو دې معذورۍ هغه له دې را ونه ګرځاوه چې خپلې هیلې په اوبو لاهو کړي، بلکې ویې شوای کولای چې لا محدودې بریاوې ترلاسه کړي!

نیکولاس په دې باور و چې په دې نړۍ کې یوازې دی معذور نه دی، ټول انسانان یو نه یو ډول معذورتیا لري. ناکامي معذوري ده، وېره معذوري ده، خجالته کېدل معذوري ده، زړه نازړه توب معذوري ده او... خو ایمان، هیله، پر خپل ځان باور درلودل او کلکه اراده هغه څه دي چې د انسان هر ډول معذورتیا له منځه وړي.

هو، نیکولاس چې اوسمهال په امریکا کې اوسي، وکولای شول چې لومړی ښوونځي او بیا پوهنتون پای ته ورسوي او په اقتصاد او اداره

(منېجمنټ) کې دوه شهادتنامې ترلاسه کړي او په دې سربېره د لمبا، اس ځغلولو، ګلف او فوټبال لوبو کې هم ښه وځلېږي!
یوازې دا نه، بلکې په امریکا کې معذورانو ته د پاملرنې د یوې لویې موسسې او ورسره د دوو نورو لویو امریکایي شرکتونو رئیس هم شو.
نیکولاس د خپل ژوند پر مهال له ځینو مالي ستونزو سره مخ شو، په (۱۹۹۰) میلادي کال کې استرالیایي حکومت خپل قانون بدل کړ چې پایله کې یې دولتي ښوونځیو ته د معذورو ماشومانو پر ورتګ بندیز ولګېد. که څه هم چې د نیکولاس مور او پلار ښوونځي ته د خپل زوی د لېږلو لپاره کومه بله مالي مرسته ترلاسه نه کړای شوه، خو له دې سره سره یې بیا هم خپل زوی ته د یوه ځانګړي ښوونکي د ګومارلو لګښت پر ځان ومانه ترڅو زوی یې په ابتدایه او منځنۍ مرحله کې خپلې زده کړې بشپړې کړي.
هو، د نیکولاس مور او پلار د خپل زوی د پرمختګ مخې ته پُرتو ټولو خنډونو په لرې کولو کې لوی رول ولوباوه، د هغه په زړه کې یې د هیلې نیالګي وکرل او په دې بریالي شول چې له ژوند سره یې مینې کولو ته وهڅوي. تل به یې د خپل زوی په غوږ کې ویل: «خپل ځان ته په ایجابي «مثبت» نظر کتل هغه څه دي چې نور خلک تا ته درکتلو ته اړ باسي.»

- دا کیسه تا ته ډالۍ کوم. هو، تا ته ای هغه انسانه چې دوه لاسونه او دوه پښې لرې، خو بیا هم د ناکامۍ تر سیوري لاندې شپې ورځې سبا کوې، څکه اصلاً حرکت نه کوې!
- پرېږده چې سپینه یې درنه وپوښتم: ایا هغه وخت نه دی رارسېدلی چې ځان ته په بل نظر وګورې، پر خپلو وړتیاوو باوري شې او له سره کار پیل کړې؟!
- ایا د نیکولاس د بریا کیسې دې ته ونه هڅولې چې په پیاوړې ارادې د ناکامۍ هغې مرغۍ ته لاسونه وخوځوې او خدای پاماني ورته ووایې چې کلونه کلونه یې ستا د ژوند په کرونده کې تېر کړي؟!

## ۱۴ له خندونو تېر شه!

ستا په ژوند کې هر راتلونکی خنډ د اس څغلولو په سیالۍ کې ستا د اس مخ ته د راتلونکو خنډونو په څېر دی، نو کله چې خنډونو ته ورنږدې کېږې او غواړې ترې تېر شي او دا مهال خپله وېره بوه لوري ته وغورځوې، نو له شک پرته چې اس به دې ترې تېر شي'

(لورانس بیکسای)

## ۱۵ د سرو زور گردونه را ټول کړه!

د امریکا د فلادلفیا ایالت د سرو زرو په یوه فابریکه کې تر ماشینونو لاندې له لرگیو جوړ شوی جالي شکله سبد ایښودل شوی وي، ترڅو د سرو زرو هغه گرد پکې را ټول شي چې میلیونونه ډالر قیمت لري، خکه نو د سرو زرو د گرد ښه ساتنه کېږي. په حقیقت کې هر بریالی انسان هم همدې جالۍ ته ورته جالۍ لري او د خلکو هغه ورځې، ساعتونه، دقیقې او ثانیې پکې را ټولوي او بیا ترې گټه اخلي چې هغوی یې د ژوند په کثافت دانۍ کې غورځوي. نو هغه خلک چې ضایع شوې شیبې، ساعتونه، د ناڅاپي رخصتیو ورځې او نور ضایع سوي وختونه را ټولوي، له دې ارزښتناک راز څخه نه حیرانوونکې او نه باورېدونکې پایلې لاس ته راوړي.

- هاریېټ بیچر د کورنیو کارونو له فشار او ډېروالي سره سره وکولای شول چې د ماښامنۍ تیارولو، ماشومانو ویده کولو او لنډو لنډو دمو پر مهال په سپما کړیو دقیقو کې خپل مشهور او په زړه پورې ادبي شهکار، «د ټام کاکا جونگړه» ولیکي!

ښه نو اوس ته ووایه چې له موږ نه څومره ورځې په بې گټې خبرو اترو او بنډارونو کې ضایع کېږي؟!

## ۱۶ د خپل ځان واکدار اوسه!

ګونبه توب، بې زړه توب او خپل ځان کم بلل د بریا تر ټولو سرسخته دښمنان دي او پر انساني روحیه تر ریښتینې ناتوانۍ هم ډېر بد تاثیر لري.
یوناني فیلسوف ابیقطیتیس وايي:
«انسان تر هغې ازاد نشي بلل کېدای ترڅو چې د خپل ځان واکدار نه وي.»

## ۱۷ مبارز برنارډ شاو!

برنارډ شاو پوره نهه کاله لیکوالي وکړه، خو نه یې کومه بریا په برخه شوه او نه هم شهرت، خو بیا یې هم له ځان سره پرېکړه وکړه چې خپل ټول وخت لیکوالۍ ته وقف کړي. یو ښه عادت چې خپل کړی یې و او د ژوند تر پایه ورسره و، دا و چې هره ورځ به یې خامخا پنځه پاڼې لیکل کول، دې ته به یې پام نه کاوه چې لیکلو ته یې زړه کېږي که نه!
برنارډ شاو په دې اړه وايي:
د شاګردۍ او دندې د مهال ځینې عادتونه لا هم په ما کې پاتې وو، هر وخت به مې له خپل ورځني عادت سره سم تر پنځو پاڼو ډېر څه نه لیکل، ان که په هغو کې به داسې یوه ګټوره جمله هم نه وه چې سکوت بې مفهومه جملو اکتفاء کوله او خپل عادت به مې ترسره کاوه.
یې پنځه اوږده ناولونه ولیکل او له هر یوه څخه یې یوه یوه کاپي په برطانیې او امریکا کې هرې خپرندویې ټولنې ته واستوله، خو ټولو رد کړې او ډېرو خپرندویو ټولنو لا نظر هم دا وو چې پر دې ناولونو باید بیا کتنه وشي!

دا ډول ډېرې لیکنې یې وکړې، خو ټولې بې ګټې وې، تر دې چې نور له لیکوالۍ تنګ شو او داسې یوه ورځ هم پرې راغله چې خپرندویه ټولنو به یې لیکنې نه اخیستې، کله چې به یې جامې زړې شوې او د لندن ښار په کوڅو کې به روان و، نو هڅه به یې کوله چې د خپلو جامو او څپلیو پېوندونه له خلکو پټ کړي، خو له دومره بېوسۍ او بېوزلۍ سره سره برنارډ شاو بیا هم وړۍ تړۍ پاتې نه شو، څکه مور به یې د ده لپاره ترکاري او ډوډۍ په قرضو اخیسته.

د نهو کلونو په اوږدو کې چې په همدې حال یې تېر کړل، د خپل قلم په برکت یې یوازې پنځه روپۍ د یوې مقالې په بدل کې چې د طب په موضوع یې د یوه وکیل په غوښتنه لیکلې وه؛ ترلاسه کړې. دویم ځل یې د ټاکنو پر مهال د کمپاین کولو له لارې څو روپۍ ترلاسه کړې، خو له دې هر څه سره برنارډ شاو ناکامۍ ته غاړه کېنښوده، څکه چې د ده ضمیر به دې د بریا پر لور هڅاوه، د یوې داسې بریا پر لور چې ناکامه خلک ورته هېڅکله نه شي ور رسېدای!

## ۱۸ څرګند دریځ خپل کړه!

- که د یوې اوږدې مودې لپاره په دې باور وې چې ښایي له ناکامۍ سره مخ شې، لرې نه ده چې دا باور دې په حقیقت بدل شي!
(نورمان فینسنټ بیل)

## ۱۹ خیر دی که فقیر یې!

«موزار» تر دې حده فقیر و چې نور یې له پښو غورځولی و، تر دې چې د لرګو اخیستو توان یې هم نه درلود چې د ژمي په یخو شپو کې پرې خپله کوټه ګرمه کړي. خپل لاسونه به یې د وړی په دستکشو کې منډلي وو چې ګرم یې وساتي ترڅو د خپل هغه شهکار فن لپاره ژوندی پاتې شي چې وروسته یې د ده نوم تلپاتې کړ. موزار په پنځه دېرش

کلنۍ کې د سل ناروغۍ له امله ومړ، دا وروسته تر دې چې د دوامدارې یخنۍ او پرله پسې لوږې له امله یې ټول جسمي څواک له منځه ولاړ. د جنازې مصارف یې دولس شیلینګ وو، جنازه یې ایله شپږو کسانو قبر ته یوړه، هغه شپږ کسان هم نږدې وه چې د باران له امله بېرته ستانه شي. خو موزار له دومره دردوونکې بېوزلۍ سره سره بیا هم ناکامۍ ته تسلیم نه شو او خپل هدف یې ترلاسه کړ.

## ۲۰ اته ثانیې صبر وکړه!

د ډېرو کلونو لپاره د امریکا د درندو وسلو کارولو تګلاره دا وه چې کله به یې د هغو میلې ـ هدف پر لور ور وګرځولې، تر ګوزار مخکې به یې اته ثانیې صبر کاوه. یو ځل د پوځ د لا ښې روزنې په موخه له یوه کارپوه نه مرسته وغوښتل شوه، هغه چې دا اته ثانیې ځنډ ولید، د لامل په اړه یې پوښتنه وکړه. مسوولو پوځیانو ورته وویل چې دا یوازې یو زوړ تقلید او لارښوونه ده او دوی یې هم به لامل نه پوهېږي. کارپوه خپلو څېړنو ته دوام ورکړ او دا خبره یې له ضابطانو سره شریکه کړه، د هغوی خواب هم همدا و چې دا له پخوا بوه ـنی کـدونکې تګلاره ده او دوی ته لامل نه دی معلوم

خو کارپوه پر دې خبرو قانع نه شو. د پوځ پخوانۍ دوسیې یې راوسپړلې او د اته ثانیو ځنډ په اړه یې پکې څېړنه پیل کړه. په پای کې یې ومونده چې دا اته ثانیې ځنډ ـه پوځ کې یو پیاوړی تقلید بلل کېږي او اصلي کیسه یې اتلسمې ـیلادي پېړۍ ته ور ګرځي. تر ټولو حیرانوونکې خبره د دې ځنډ لامل و، پوهېږې چې پوځ ولې دا کار کاوه؟ ترڅو پوځیانو ته په دې اړه لږ فکر وکړه، اوس هم داسې خلک شته چې په خپلو پروژو، دندې او نوښت کې له دې تګلارې کار اخلي، خو پر دې نه پوهېږي چې دغه تګلاره زړه شوې او هېڅ په درد نه خوري!

- ایا د ځان روزنې هڅه دې کړې؟
- ایا د وروستنیو اختراعاتو په اړه د پوهېدو هڅه دې کړې؟
- ایا د خپلو هغو ذهني لید لورو او ستراتیژیکو تګلارو د بدلولو هڅه دې کړې چې هېڅ ښکاره ګټه نه درته لري؟

زه په باور سره وایم چې ته د بریا ترلاسه کولو وړ یې، یوازې پر خپل رب توکل وکړه او په ډاډ سره وخوځېږه. د خپلې بریا ودانۍ د نورو پر ناکامو تجربو مه جوړوه او تر نن ورځې وروسته هېڅ اړتیا نه شته چې ځنډ وکړې!

## ۲۱ نړۍ مه بدلوه!

ډېر خلک د نړۍ بدلولو ته لېواله وي ترڅو د دوی ژوند ورسره ښه شي. زه وایم افسوس د دوی پر دې بېځایه هیلې، ځکه که دوی لومړی په خپلو ځانونو کې بدلون راولي، نو لرې نه ده چې هم د دوی ژوند او هم د نړۍ حالت ښه شي! (جارج هنرِچ)

## ۲۲ «نه» ووایه او پر خپل ځای کلک ودرېږه!

«روزا لویس بارکس» په (۱۹۱۳) میلادي کال کې وزېږېده، له رنګه تکه توره وه، کله چې یې مور و پلار سره بېل شول، نو بارکس به په یوه زراعتي ځمکه کې له خپلې مور، نیا، نیکه او کوچني ورور سره ګډ ژوند کاوه. کله چې یوولس کلنۍ ته رسېده، کورنۍ زده کړې یې پای ته رسولې وې.

بارکس خپلې ابتدایه زده کړې د «مونتیګمیري» ښار په یوه ښوونځي کې پای ته ورسولې، بیا د ثانوي زده کړو بشپړولو په موخه په امریکا کې د افریقایانو لپاره جوړ شوي یوه ښوونځي کې داخله شوه، خو له بده مرغه چې د خپلې ناروغې مور او نیا د خدمت کولو له امله ترې ښوونځی پاتې شو.

روزا بارکس د خپل ماشومتوب پر مهال او په ځانګړې توګه هغه وخت
چې د امریکا د جنوب په سخت نژادي تبعیض لړونکې سیمه کې
اوسېده؛ له هغې سره د نژادي تبعیض ډېرې بېلګې ولیدې. د «جیم
کرو» د قانون له مخې سپین پوستي او تور پوستي به یو له بله بېل
اوسېدل، دې قانون سپین پوستو ته پر تور پوستو غوره والی ورکړی و،
تر دې چې ان په نقلیه وسایلو کې به هم نژادي تبعیض لیدل کېده او
هغه داسې چې موټر ته د سپین پوستي تر را ختلو وروسته تور پوستي
مجبور و چې خپله څوکۍ هغه ته پرېږدي!

هغه مهال چې روزا بارکس دوه څلوېښت کلنه وه او خیاطي یې کوله،
همغه مهال یې د امریکا په تاریخ جوړولو کې برخه واخیسته. یوه ورځ د
مونټیګمري ښار په ملي بس موټر کې ناسته وه، یوه سپین پوستي ترې
وغوښتل چې خپله څوکۍ هغه ته خوشې کړي، خو هغې یې خبره ونه
منله. ان د چلوونکي امر ته یې هم پاملرنه ونه کړه او خپله څوکۍ یې
پرېنښوده. په دې توګه هغې په امریکا کې ټاکل شوي اصول او د نژادي
تبعیض قوانین تر پښو لاندې کړل. قانون پر تور پوستو دا خبره لازمي
کړې وه چې موټر ته د سپین پوستي تر راختو وروسته به خپله څوکۍ
هغوی ته پرېږدي. پایله دا شوه چې له ملي بس نه یې ښکته کړه او ښه
یې ووهله، بیا پولیسو ونیوله او څوارلس ډالره یې جریمه کړه!

دې را پارونې د نژادي تبعیض پر ضد یوه لوی کمپاین ته لاره پرانیسته،
د یوه تورپوستي کشیش «مارټن لوتر کینګ» په مشرۍ د تورپوستو
یوې لویې ډلې د بارکس تر نیونې وروسته د (۳۸۱) ورځو لپاره په عامه
بسونو کې له سپرېدو انکار وکړ. د دې کمپاین پایله دا شوه چې په ټوله
امریکا کې یې د رنګ پر اساس په موټرو کې د توپیري چلند له منځه
وړلو ته لاره هواره کړه، تر دې چې په (۱۹٦۴) میلادي کال کې خبره دې
ته ورسېده چې د مدني ازادیو قانون تصویب شو او د هغې له مخې په
امریکا کې د رنګ پر اساس توپیري چلند منعه اعلان شو.
اغلې بارکس په (۱۹۹٦) میلادي

کانګریس له لوري له ازادیو د ملاتړ د سرو زرو مډال ترلاسه کړ. نوموړی مډال په امریکا کې تر ټولو لوړ دولتي امتیاز بلل کېږي.
د مدني حقوقو پیاوړې پلوۍ روزا بارکس د (۲۰۰۵) میلادي کال د اکتوبر په میاشت کې د (۹۲) کالو په عمر وفات شوه.

- ښه نو ایا د بارکس له دریځه دې څه زده کړل؟!
- هو! ډېره ښه ده، باید پر دې پوه شې چې پر حق د ثابت پاتې کېدو خواک هغه څه دي چې تاریخ جوړوي او خاوندان یې په خپل ژوند کې ښې پایلې ترلاسه کوي.
- دا هغه مبدأ ده چې په اړه یې زموږ خوږ پېغمبر محمد صلی الله علیه وسلم څوارلس سوه کاله مخکې خبر راکړی و، نو ژور فکر پکې وکړه او د تطبیق لپاره یې کار پیل کړه:

«قوي مؤمن تر کمزوري مؤمن الله تعالی ته ډېر خوښ دی او په دواړو کې خیر شته.»

نو پر خپلو اهدافو په ثابت پاتې کېدو سره څواکمن اوسه او هېڅا ته اجازه مه ورکوه چې د بریا له کاروانه دې وشړي، ځکه ته د دې حقدار نه یې چې په ناکامۍ تورن شې، لامل چې یې هر څه وي!
قدرمن او مهربان خدای ملایکې تا ته په سجده کړې، نو ایا تر دې وروسته هم کومه پلمه پاتې کېږي چې د بریا او لوړتیا پر اس سپور نه شې او د ناکامۍ او رټنې له خندونو تېر نه شې؟!

## ۲۳ جاپاني میندو ته یې څواب معلوم دی!

که له یوې امریکایي مور نه د هغه د زوی د درسي فعالیت د غوره والي او کمزورۍ د لامل په اړه وپوښتې، نو سمدستي به درته ووایي: دا د هغه د ځیرکتیا په ډېروالي یا کموالي پورې اړه لري، خو که له یوې جاپانۍ مور نه همدا پوښتنه وکړې، نو سم څواب به ترلاسه کړې. تقریبا د ټولو جاپاني میندو څواب به دا وي: په درسي فعالیتونو کې غوره والی او

کمزوري د کړې خوارۍ او زحمت په حجم پورې اړه لري. له همدې امله د ټولو جاپانيانو له نظره منل شوې قاعده داسې وايي:
«نوښت هغه مهال ممکن دی چې اضافي خواري او پر سختيو صبر وکړې!»
د همدې قاعدې په اړه د نړۍ تر ټولو لوی مخترع توماس اډيسون وايي:
«خومره نوښتونه چې مې کړي، (۲٪) يې الهام او (۹۸٪) يې زما خپله خواري وه!»
نو!

- ته هم له دې جاپاني قاعدې ګټه واخله، د خپلې خوارۍ حجم لا زيات کړه او هېڅکله د ماتې په منلو د هغه څه له لاسته راوړلو مه نهيلی کېږه چې ته يې غواړې. يو ځل، لس ځلې ان سل ځلې کوښښ وکړه، يو نه يو ځل خامخا بريالی کېږې، ځکه پرله پسې خواري او پر سختيو صبر کول دې خامخا خپل هدف ته رسوي.
- کله چې دې يوه کار ته ملا وتړله، نو باور ولره چې د الله تعالی په مرسته يې خامخا پای ته رسوې، خو پام چې د ناکامی څنځيرونو ته تسليم نشې، ځکه دا ټول بريالي او لوی خلک له پيله نابغه ګان نه وو، بلکې ټولو پر سختيو صبر کړی و او د پرله پسې خوارۍ لمن يې نيولې وه، ځکه نو د بريا وړ وبلل شول.

## ۲۴ په کوچني پيل مه خپه کېږه!

- ايا باور کوې چې د «هيلين کيلر» په څېر يوې ړندې او کڼې ښځې ان د دوکتورا سند ترلاسه کړ او لسګونه کتابونه يې وليکل؟!
- باور دې راځي چې تر ټولو لوی فرانسوي ناول ليکونکی «بلزاک» د فکري جنون په رواني ناروغۍ اخته و؟!
ريښتيا دا ...

ګټه ترې واخله. هېڅکله باید کوچني پیل ته خپه نه شې، ځکه اصلاً د پایلو ښه والی تر هر څه مهم دی!

## ۲۵ بانس!

بانس اوسمهال د نړۍ تر ټولو حیرانوونکې او بې جوړې بوټی دی، تخم یې کرل کېږي او د هر ساعت په اوږدو کې اوبه ورکول کېږي. بزګر یې د پوره څلورو کلونو لپاره بشپړه پالنه او پاملرنه پر غاړه اخلي، خو له دې دومره کوښښونو سره سره په څلورو کلونو کې د دې ناشنا بوټي لوړوالی ایله لس سانتي مترو ته رسېږي، خو په پنځم کال دا حالت بدلېږي، د صبر مېوه لاس ته راځي او بزګر د خپلو پرله پسې هڅو د خوږوالي خوند څکي. داسې چې په پنځم کال (۱۸) متره لوړېږي!
ښه نو دا څه ډول صبر، حوصله، ثبات، همت او پیاوړې اراده ده چې دا بزګر یې له ځانه ښیي؟! په داسې حال کې چې په لومړنیو څلورو کلونو کې یې کرل شوی بوټی یوازې څو سانتي متره لوړېږي، خو له دې سره سره یې زاره چاودې پالنې او روزنې ته دوام ورکوي، ځکه هغه پر دې پوره باور لري چې د خپلې سختو هڅو مېوه په پای کې ترلاسه کوي.
هو، راز همدا دی!

- قدرمنه لوستونکیه! ته هم د هر کار په پیل کې د پایلې انتظار مه کوه، بلکې د خپل ټاکل شوي هدف ترلاسه کولو لپاره ثابت پاتې شه، له صبر نه کار واخله، خپله ماتې مه اعلانوه او بریا ناشونې مه بوله، ځکه که خدای غوښتي وي، حتما به یې ترلاسه کړې، خو یوازې دومره وکړه چې له تادي کار مه اخله او تر هغې چې خپلو هڅو ته دوام ورکوې، الله تعالی هم هېڅکله ستا خواري په اوبو نه لاهو کوي!



## ۲۶ خپله بریا ولمانځه!

زه پر دې خبره قوي باور لرم چې د انسان په ژوند کې تر ټولو خوږې شیبې هغه دي چې پکې د خپل شریفانه هدف ترلاسه کولو لپاره نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کوي، بیا تر سختې ستومانۍ وروسته د مبارزې په ډګر کې اوږد غځېږي او خپله بریا لمانځي!
(فینس لومباردي)

## ۲۷ ځنځیرونه مات کړه!

ښوونکو یې تنبل، وروسته پاتې او غېر فعال زده کوونکی باله، له هغه یې وغوښتل چې پوهنتون پرېږدي، خو هغه له دې سلبي پیل سره سره په دې بریالی شو چې شل کلنۍ ته تر رسېدو مخکې د بخار ګرځنده انجن اختراع کړي!
دویمه اختراع یې د هغې دستګاه جوړول وو چې له پټلۍ وتلی رېل کاډې به یې بېرته خپلې پټلۍ ته راګرځاوه. د هېواد ټولو شرکتونو ترې دغه دستګاه واخیسته او په پای کې یې د دې صنعت یوه داسې امپراتوري جوړه کړه چې ډېرو کمو خلکو ورسره پکې سیالي کولای شوه!
سره له دې چې هغه به د خپل عمر په وروستیو کې ځای پر ځای ناست و او د خوځېدو توان یې نه درلود، خو بیا یې هم خپلو اختراعاتو ته دوام ورکړ. له یوه ځایه بل ځای ته د تلو لپاره به یې له ګرځنده څوکۍ کار اخیست. نوموړی په داسې حال کې مړ شو چې د خپلې وروستۍ اختراع په لمانځنه بوخت و، وروستۍ اختراع یې د معذورانو لپاره جوړه شوې ګرځنده څوکۍ وه.
دا زده کوونکی «جورج وستینګهاوس» و چې ښوونکو یې تنبل باله، خو هغه د ځان په اړه د خپلو ښوونکو دغه ډول منفي انګېرنه رد کړه او پر ځای یې دا ثابته کړه چې هغه په بشري تاریخ کې د تر ټولو ډېرو اختراعاتو څښتن دی!

## ۲۸ پر خپلې کورنۍ وویاړه!

- ایا په دې باور یې چې هېڅوک د خپل پلار د بې وزلۍ او ټولنیز ارزښت نه لرلو له امله هغسې بریا نه شي ترلاسه کولای چې هیله یې لري؟
- ایا ته پر دې باور یې چې ګواکې نصیب دې ښه نه دی، ټولې لارې دې پر مخ تړل شوې، ټول فرصتونه ستا پر ضد دي او په خپل کار کې دې د پرمختګ امکان نه شته؟

ښه نو پرېږده چې یوه خبره درته وکړم: ته په غلطه یې، انګېرنه دې سمه نه ده، ځکه په نړۍ کې په زرګونو داسې لویان او مخترعین شته چې ستا په څېر یا تر تا هم بدو شرایطو سره لاس او ګرېوان وو، خو هغوی له دې سره سره هم نهیلي نه شول، بلکې بریا ته لا نور هیله من شول او خپلو هڅو ته یې دوام ورکړ تر دې چې خپلو اهدافو ته ورسېدل او ټاکل شوې بریاوې یې ترلاسه کړې. دا یې څو بېلګې دي:

- د لوی انګلیسي شاعر، شکسپیر پلار قصاب و او مور یې له هغو میندو یوه وه چې په ډېره مشکله یې لیک او لوست کولای شو!
- فرانز شوبرټ، هغه کس چې لا یې هم نړۍ په خپلې موسیقۍ حیرانه کړې؛ د یوه بېوزله ښوونکی زوی و چې په تنخوا به یې د شتمنو په کورونو کې اشپزي کوله.
- میشل فراډای، هغه انګرېز عالم چې نننۍ نړۍ یې د برق په برخه کې پر کړیو تحقیقاتو ویاړي؛ د یوه آهنګر زوی و.
- بنجامین وسټ چې د نړۍ په معاصرو انځورګرانو کې د سر سړی بلل کېږي، په یوه بېوزله کورنۍ کې لوی شوی و.
- امریکایي میلیونر، ارکریټ چې د ماشین په واسطه د پنبې پاکولو د صنعت په پرمخ بېولو کې یې تر ټولو لویه ونډه درلوده، د خپل ژوند په پیل کې یو عادي سلماني و چې ان د خلکو د سر ویښتان به یې هم سم نشوای جوړولای. هغه به د درېیو

سنتو (Cents) په بدل کې د خلکو بېړي ور خړبيلې او خپل ژوند به يې پرې تېراوه!



- مشهور انګرېز ليکوال، بن جانسن په پيل کې يو عادي خټګر و چې د خورا لږې اجورې په بدل کې به يې کورونه جوړول.
- نيوټن، هغه نابغه چې د جاذبې قانون يې کشف کړ، د يوه بېوزله مانو زوى و.
- جورج ستيفنسن، د انجن مخترع په پيل کې يو آهنګر و.
- د طبيعي علومو د لوى عالم، ايډواردز پلار څپلى ګنډونکى و.
- د امريکې د پخواني ولسمشر، اينډريو جانسن پلار خياط و.

ايا تر دې وروسته هم له بريا ترلاسه کولو نهيلى يې؟!
ولې؟!
ځکه چې بېوزله يې؟!
نو راځه دا کيسه واوره:

«برنارډ بليس، له بېوزلۍ سره سره پوره شپږ کاله پرله پسې خوارې وکړه او خپل تحقيق ته يې دوام ورکړ، پايله يې دا شوه چې مخوېې رنګ راوور، بريا يې نصيب شوه او د پلاستيک جوړولو ابتکار يې په برخه شو چې اوس په صنعت کې لوى ارزښت لري!
ايا له دې امله نهيلى يې چې د زده کړې وخت او عمر درنه تېر شوى؟!

نه ده، راځه چې دا کيسه درته واوروم:
يوه انګرېز کارګر پوره درې دېرش کاله د نساجۍ په يوه فابريکه کې د ورځې څو ساعته کار وکړ، له خپل کار ځاى سره نږدې به يې يو کتاب کېښود او د تار اوبدلو پر مهال به يې بيا بيا د هغې پاڼو ته نظر اچاوه او يوه جمله به يې له دې او يوه به يې له هغې پاڼې زده کړه. د کار تر پاى ته رسولو وروسته به يوه شپني ښوونځي ته ورته او دوه ساعته به يې هلته تېرول، بيا چې به کور ته را ستون شو لږه دمه به يې وکړه، له سره به يې خپله مطالعه پيل کړه او پکې

ډوب به شو، تر دې چې مور به يې راغله او هغه ډيوه به يې مړه کړه چې ده به يې رڼا ته مطالعه کوله، نو بيا به د مجبورۍ له مخې خپلې بسترې ته ولاړ او ويده به شو.

هغه له لس کلنۍ همدا ډول ژوند تېراوه، تر دې چې درويشت کلن شو. بيا دوه کاله نه وو تېر شوي چې انگليسي ژبه يې زده کړه، په جيولوژۍ او طب کې يې شهادتنامې ترلاسه کړې او د مشهورو علماوو له ډلې وشمېرل شو!

پوهېږې چې دا کارگر څوک و؟

دا ډيوډ ليوينگنسټن و، هغه عالم او طبيب چې د ويکټوريا ابشارونو سرچينې يې کشف کړې وې!

يوازې يوه پوښتنه ده:

ايا اوس داسې احساسوې چې ته د خپلې کورنۍ له امله څومره نېکمرغه يې او پر هغوی وياړې، ان که هغوی هر څه دي؟!

هيله لرم چې همداسې احساس به ولرې!

## ۲۹ يوه الوتکه بس نه ده!

ريچارډ برينسن، د ورجن (Vergin) نړۍ والې مارکې (نښې) او ورجن اتلانټيک او څو نورو هوايي کرښو څښتن به دا خبره همېشه تکراروله: «زه همېشه زده کړه کوم او هيله لرم چې له دې کاره لاس وانخلم او که کله غواړم چې يو داسې کار ترسره وکړم چې مخکې مې نه وي ترسره کړی، نو د ترسره کولو په لارو چارو يې ځان پوهوم.»

په تاکيد سره وايم چې د ده او د ده په څېر نورو برياليو خلکو لاره همېشه په گلونو نه وي پوښل شوې، بلکې ډېر ځله شگلنه، اغزنه او سخته وي.

په ورجن هوايي شرکت کې يې کار د يوې کارېدلې الوتکې له پانگونې پيل شو. هغه غوښتل يوه غونډه را وبولي او په دې سره رسماً خپل کار

پيل کړي، نو د هغه د دفتر يوې کار کوونکې له يوې ورځپاڼې سره اړيکه وکړه چې د شرکت د پرانيستې غونډې ته راشي او راپور پرې جوړ کړي. کله چې د ورځپاڼې سکرتره راغله، تر ټولو مخکې يې دا پوښتنه وکړه:
د الوتکو شمېر مو څومره دی؟!
د دفتر کار کوونکې ځواب ورکړ: يوه الوتکه لرو!
د ورځپاڼې سکرترۍ ترې د بلنې له امله مننه وکړه او بيا يې ورته وويل: کوم بل وخت، کله چې مو شرکت د پرېمانه الوتکو خاوند شو، بيا راسره اړيکه ونيسئ؛ چې خبري پوښښ ته يې راشم!
د سکرترۍ په دې ناشنا خبره د دفتر کار کوونکې سخت وخندل!
دلته يوه مهمه پوښتنه را ولاړېږي: ايا د سکرترۍ دې ريشخندي ځواب د ورجن هوايي کرښې کيسه ور ختمه کړه؟!
نه، هېڅکله نه!
ښاغلي برينسون خپل نوي شرکت ته د بازار موندنې لپاره يوه نوې تګلاره غوره کړه، امريکا ته يې د خپلې هوايي کرښې د ور پېژندلو لپاره د سفر تابيا ونيوله او هلته په دې بريالی شو چې د خلکو پاملرنه ورته را واړوي.
د هغه ژوند ليکونکي ليکي چې نن سبا د هغه يوه کاربدلې الوتکه لرونکې هوايي کرښه بې شمېره عصري الوتکې لري او له همدې امله وه چې د سنګاپور هوايي کرښې د هغې د (۴۹٪) برخې اخيستو ته زړه ښه کړ!
هغه په دې توګه بريالی شو او په همدې توګه هغه خلک هم بريالي کېږي چې د هغه په څېر د بريا تلوسه ولري.
هو، موږ دې ته اړتيا لرو چې د غرونو لوړو څوکو ته ور وخېژو او د سمندرونو په ژورو کې لامبو ووهو ترڅو خپل خوب په حقيقت بدل کړو او د خپلو اهدافو په ترلاسه کولو بريالي شو.
پرېکړه ستا په لاس کې ده چې ځان ته له نړۍ والو معيارونو سره سمه د بريا کيسه ليکې او که نه، ځکه ستا اهداف داسې نه دي چې ترلاسه

کول یې ناشوني وي.

هو، ته د دې ور یې چې د بریا کیسه ولرې، خو پام چې د ناکامۍ د مقیاس پر مخ یو ناځاپه را ونه لوېږې!

## ۳۰ یو موټي خاوره!

له ځمکې یو موټی خاوره را پورته کړه، ښایي بې ارزښته درته ښکاره شي، خو کېدای شي د همدې یوه موټي خاورې په جوړېدنه ۸۰۰۰ کاله لګېدلي وي!

دې خبرې هک پک کړې؟!

ښه نو خپل هېڅ نوښت ته په کمه سترګه مه ګوره، که څه هم چې ډېر بې ارزښته درته ښکاره شي.

- دا قاعده درسره یاد لره:

خپلې ورځنۍ کوچنۍ لاسته راوړنې او د بریا لنډې شیبې ولمانځه او همېشه په لوړ غږ دا جمله تکراروه: زه په خپلې بریا باور لرم. بیا خپل اهداف له ځانه سره په ورو اواز تکرار او په یوه ښکاره ځای کې یې خپلې مخې ته خوړند کړه او هره ورځ ورته پاملرنه کوه، ځکه که اهداف دې ونه لیکې، هره ورځ یې ونه ګورې او پاملرنه ورته ونه کړې، هېڅکله یې نه شې لاس ته راوړلی.

## ۳۱ تر تالندې وروسته باران ووري!

د سقراط کورنی ژوند له خورا ناخوالو ډک و، ښځې یې (زانتیب) د هغه ژوند په یوه دوزخ بدل کړی و، ځکه د هغه عجیب و غریب کارونه، انساني هوا او هوس ته سپکاوی او د هغه څه ترلاسه کولو ته ځان تیارول چې د ده په ګومان د بشپړ تائید او پرله پسې هڅو وړ وو او د دې په مقابل کې له هر شي ګوښه کېدل، دا ټول هغه څه وو چې د ده د ښځې ویره

او هیجان یې را وپاراوه، ځکه هغې داسې بلله چې د ده فکر ښکاره لېونتوب او بېهوده افکار دي!

کله به چې د سقراط ښځه په غوسه شوه او پر ده به یې چغې پیل کړې، ده به چوپتیا غوره کړه. زانتیب ډېره هڅه وکړه چې سقراط په لوی لاس شخړو او لانجو ته ور ټېل وهي، خو دې کار ورته کومه گټه ونه کړه، ځکه سقراط به پر ټولو هغو نیوکو خان کوڼ نیولی و چې ښځې به یې د ده پر شخصیت او کارونو کول.

کله چې زانتیب له دې کاره ستړې شوه، نو پرېکړه یې وکړه چې خپله غوسه په عمل کې پلي کړي، همدا وه چې هره ورځ به یې یو سطل له اوبو ډکاوه او بیا به یې د سقراط پر سر اړولې، خو هغه به په خورا نرمۍ سره خپلې لمدې جامې وچولې، د خپل گنجي سر یو تار وښته به یې گومنځول او ویل به یې:

«تر دې تالندو او برېښناوو وروسته له دې پرته بله چاره نه لرم چې د باران ورېدو په تمه واوسم!»

- د سقراط دا شکلی دریځ او حیرانوونکې فلسفه موږ ته دا رانښیي چې دا ضروري نه ده چې زموږ شاوخوا خلک دې خامخا پر موږ او زموږ پر اندونو باور ولري ترڅو بریا ترلاسه کړو، ځکه کله کله زموږ تر ټولو نږدې کس نه لاشعوري توگه موږ د ناکامۍ کندې ته ور ټېل وهي.
- دا خبره د عذر او خان تېر ایستلو په معنا نه ده چې خپله ماتې پرې توجیه کړو. ځکه د بریا تلوسه لرونکي تر هغې له سترگو برېښوونکو تالندو او باران څخه نه وېرېږي چې مقاومت کوونکې چترۍ یې پر سر نیولې وي!



## ۳۲ دروازې!

کله چې یوه دروازه تړل کېږي، بله سمدستي پرانیستل کېږي، خو مونږ د همغې تړلې دروازې مخې ته ډېر وخت ودرېږو او پښېماني څرګندوو تر دې چې هغه بله دروازه له سره نه وینو چې راته پرانیستل شوې!
(الیکزانډر ګراهام بل)

## ۳۳ محمد صلی الله علیه وسلم؛ د تاریخ تر ټولو لوی هیله من انسان!

رسول الله صلی الله علیه وسلم به په هر ډول سختو حالاتو کې د خپلو ملګرو روحیه لوړوله، هغه څه چې یې د احزاب په غزا کې د خندق کیندلو پر مهال وکړل، له بشري تصور نه لوړ کار و. خپلو ملګرو ته به یې یوازې د خندق کیندلو، پر را ټولو شویو دښمنو ډلو د غلبې او پر ټولو عربو د برلاسۍ هیله نه ورکوله، بلکې د هغوی همتونه به یې د هغوی تر تصوره ډېر لوړول او په زړونو کې به یې ورته د ټولې نړۍ د مشرۍ هیله کرله.

کله چې صحابه کرامو ته د خندق کیندلو پر مهال یوه لویه ډبره مخې ته راغله، رسول الله صلی الله علیه وسلم کُلنګ را واخیست او د بسم الله په ویلو یې پرې ګوزار وکړ، نو د ډبرې درېیمه برخه ماته شوه، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

«الله اکبر، د شام کیلیګانې راکړل شوې، قسم په الله! له همدې خایه یې سره قصرونه وینم.»

بیا یې د بسم الله په ویلو بل ګوزار پرې وکړ، بیا یې درېیمه برخه ماته شوه، ویې فرمایل:

«الله اکبر، د فارس کیلیګانې راکړل شوې، قسم په الله! له همدې خایه یې سپین قصرونه وینم.»

په درېيم ځل يې بيا بسم الله وويله او ګوزار يې پرې وکړ، نو ډبره ذرې ذرې او له مخې لرې شوه. رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل:
«الله اکبر، د يمن کيليګانې راکړل شوې، قسم په الله! له همدې ځايه د صنعاء دروازې وينم.»
رسول الله صلی الله عليه وسلم دا هم فرمايلي:
«زما په امت کې تر قيامته خير شته.»
هو، تر هغې چې د الله تعالی پر ځمکه ژوند روان وي، په دې امت کې به خير موجود وي.
ژوند ته د هيله مندۍ تر ټولو لوی مثال يې په دې حديث کې له ورايه ښکاري:
«کله چې قيامت راشي او ستاسې د کوم يوه په لاس کې شنه لښته وي، نو ودې کري.»
ښه نو تر دې وروسته هم په خپل محبوب صلی الله عليه وسلم پسې اقتداء نه کوو او له دې ټولې مثبت انګېرنې سره سره چې ورته را بللي يې يو، بيا هم ژوند ته نه هيله من کېږو؟!
هو. دا خبرې هغه چا ته لوی زېری دی چې غواړي په پوره باور او ثبات سره د بريا پر دروازه ور ننوځي.

## ۳۴ اراده نه مړه کېږي!

د ګنډلو د ماشين مخترع (ارکرايټ) چې د ګنډلو د صنعت په برخه کې يې په نړۍ کې انقلاب راووست؛ د خپلې اختراع په پيل کې له ډېرو تخنيکي ستونزو سره مخ شو. کله چې يې ماشين اختراع کړ، د ډېرو قضايي دعوو په منځ کې را ګېر شو، د خپلو کاروباري فرصتونو له منځه تلونکو وېرېدونکو کارګرو يې پر ورانديې پاځون وکړ او د ده کارخانه يې ورانه کړه، دا ځکه چې د ارکرايټ د ګنډلو ماشين يې کاروبار په ټپه درولی و، خو ارکرايټ دې ستونزو ته تسليم نشو، بلکې لا ډېرې

کارخانې یې جوړې کړې، په لږ وخت کې یې د دې صنعت پر ډېره برخه ولکه ترلاسه کړه او په دې توګه د انګلستان تر ټولو لوی شتمن وبلل شو.

- که ستا مخې ته درتلونکې ستونزې شومره هم لویې وي، له هغو د تېرېدو هڅه وکړه او د ډېر مهال لپاره یې مخې ته مه ودرېږه، ځکه پرمختګ دې ځنډني کوي او کله چې نور خلک درسره سیالي کوي، پوه شه چې بریالی یې، نو کار ته دې دوام ورکړه!

## ۳۵ ماران مه وژنه، له زهرو یې ګټه واخله!

هالینډي بزګر (کلویفرټ) په دې هیله سویلي افریقا ته هجرت وکړ چې هلته به د سوکاله ژوند خښتن شي. له همدې امله یې خپل ټول شته خرڅ کړل چې هلته پرې یوه ټوټه شاړه ځمکه واخلي او اباده یې کړي. هغه د خپلې ناپوهۍ او کم عمرۍ په وجه خپلې ټولې پیسې پر داسې یوې ټوټې ځمکې ورکړې چې نه یوازې دا چې د کرکېلې وړ نه وه، بلکې له لړمانو، عادي مارانو او خطرناکو زهر شیدونکو کېچه مارانو ډکه وه!
کلویفرټ په داسې حال کې چې غمجن ناست و او خپل بخت یې ملامتاوه؛ ناڅاپه یې ذهن ته یو ناشنا او عجیبه فکر ورغی، له ځان سره یې وویل: ولې د ځمکې کیسه نه هېروم او له دا ډېرو مارانو څخه د زهر ضد درملو د تولید لپاره کار نه اخلم؟!
هغه همداسې وکړل او دا چې هرې خوا ته د مارانو پرېماني وه او دی په دې کار کې پوره ماهر هم و، نو په لږ وخت کې یې ډېر ژر او حیرانوونکی پرمختګ وکړ. اوس یې هماغه یوه ټوټه شاړه ځمکه د نړۍ په کچه د زهر ضد درملو تر ټولو لوی تولیدوونکی مرکز دی!

- وروسته تر دې چې په (۱۸۵۰) میلادي کال کې په کلیفورنیا کې د سرو زرو کانونه کشف شول، زرګونو کسانو هغه ځای ته

هجرت وکړ. په دې ډله کې يو الماني خياط (اوسکار شتراوس) هم و. شتراوس په خپلو هڅو کې ناکامه شو، هېڅ لاس ته ورنغلل، حالت يې دومره خراب شو چې له لوږې به د مار غوندې تاوېده را تاوېده. د نهيلۍ په دې حالت کې يې خپله آبي رنګه خيمه ټوټې ټوټې کړه او د «شتراوس جينز» په نوم مقاومت لرونکي بنيانونه يې ترې جوړ کړل. دا چې دا بنيانونه ډېر دوامداره او د کان کيندنې لپاره خورا مناسب وو، کارګر يې اخيستو ته ور مات شول. له دې سره د شتراوس کاروبار وغوړېد او په کليفورنيا کې د سرو زرو تر هر پلټونکي ډېر شمتن شو!

- ته هم د خپل بخت له ملامته کولو لاس واخله او خپله زړه خيمه د سرو زور په کان بدله کړه، يقيني ده چې بريالى به شې او کله چې له مارانو سره مخ شوې، نو د خپلې ګټې لپاره يې قابو کړه!

## ٣٦ کتاب له عنوانه مه لوله!

د امريکا په بوستن ښار کې يو ريل ګاډى په خپل تمځاى کې ودرېد، ښځه او مېړه ترې را ښکته شول، دواړو ساده جامې اغوستې وې، ښځې له پنبې جوړې شوې او مېړه يې په خپل لاس جوړې کړې رنګه جامې په تن کړې وې.

دواړه له خجالته په ډکو او ارامه قدمونو د هارورډ پوهنتون د رئيس د دفتر پر لور روان شول، په داسې حال کې چې له مخکې يې له هغه سره د ليدنې وخت نه و ټاکلى. د رئيس د دفتر سکرترې کليوالې جوړې ته وويل: رئيس صيب ډېر مصروف دى، نه شي کولاى چې سمدستي له تاسې سره ووينې. کليوالې ښځې ډېر ژر په ډاډه زړه ځواب ورکړ: موږ ورته انتظار کوو!

ښځې او مېړه ساعتونه انتظار وېوست، په دې موده کې د دفتر سکرترې

په پوره توګه هغوی هېر کړي وو، ځکه پوهه شوې وه چې د هغوی په ځېرو کې نور له رئیس سره د لیدو څرک نه ښکارېده او له همدې امله باید له دفتره تللي وای، خو دا ناممکنه وه، ځکه دوی دواړه په ښکاره د یوه لوی کار لپاره راغلي وو. کله چې د دفتر رسمي وخت پای ته ورسېد او دوی دواړو بیا هم له رئیس سره د لیدو ټینګار کاوه، نو د سکرترۍ صبر هم پای ته ورسېد، بیا د خپل رئیس خوا ته ورغله او ترې ویې غوښتل چې د یو څو دقیقو لپاره له دوی سره ووینې، ګواکې وي چې ولاړ شي!
رئیس په نارامۍ خپل سر وخوځاوه او د غوسې نښې یې پر مخ ښکاره شوې، ځکه دی دا مهال په خپل دفتر کې له عادي خلکو سره لیدنې ته مجبوره شوی و، دا خو لا پرېږده چې له پنبې جوړې شوې جامې او هغه خلک یې بدې راتلل چې د ماڼوګانو په څېر به وو، خو له دې سره سره یې له هغوی سره د څو دقیقو لپاره لیدو ته زړه ښه کړ ترڅو ژر له دفتره ووځي!
ښځه او مېړه د رئیس دفتر ته ننوتل، ښځې وویل: زموږ یو زوی دلته په هارورډ کې یو کال زده کړې وکړې، خو بیا په یوه پېښه کې مړ شو. زوی مو هغه مهال ډېر خوشاله و چې دلته یې زده کړې کولې، موږ غواړو چې د هغه د نوم تلپاتې کېدو لپاره پوهنتون ته یوه ډالۍ وړاندې کړو!
د پوهنتون رئیس د ښځې په دې خبره متاثره نه شو، بلکې په غوسه یې وویل: اغلې! دا امکان نه لري چې موږ د هر هغه چا لپاره چې په هارورډ کې یې زده کړې کړي او بیا وفات شوی، یو یادګاري څلی ودروو، ځکه بیا به نو پوهنتون د یادګاري څلو په یوه ځنګل بدل شي!
ښځې وویل: موږ د یادګار په ودرولو کې کومه دلچسپي نه لرو، بلکې غواړو د خپل زوی په نوم یوه ودانۍ هارورډ پوهنتون ته ډالۍ کړو.
د پوهنتون رئیس ته د ښځې دې خبرې هم کوم ټکان ورنه کړ، بلکې له غوسې په ډک انداز یې د هغې بې ارزښته جامو ته وکتل او د مسخرې په دود یې ځواب ورکړ: ایا کله مو پر دې فکر کړی چې دغه ډول یوه

ودانۍ جوړول څومره لګښت لري؟! موږ د دې پوهنتون پر ودانۍ څه باندې اووه نیم میلیون ډالره لګولي!!!

په دفتر کې یوه شېبه چوپتیا خوره شوه، رئیس ګومان وکړ چې په دې خبره نور نو له دوی خلاص شو. ښځې خپل مېړه ته مخ ور واړاوه او وېې ویل: ښاغلی سټانفورډ! چې په دومره پیسو یو بشپړ پوهنتون جوړېدای شي، نو بیا ولې پرې د خپل زوی په نوم یو نوی پوهنتون نه جوړوو؟! مېړه یې د موافقې په دود سر وخوځاوه.

نوموړې جوړه (لیلنډ سټانفورډ او جین سټانفورډ) د هارورډ پوهنتون د رئیس له دفتره په داسې حال کې ووتل چې رئیس په پوره نهیلۍ او بې حسۍ کې ډوب و. بیا کلیفورنیا ته ولاړل او هلته یې د سټانفورډ په نوم یو لوی پوهنتون جوړ کړ چې تر اوسه د دې کورنۍ په نوم یادېږي او د دوی د هغه زوی یاد یې تلپاتې ساتلی چې د هارورډ پوهنتون له رئیس سره مساوي درجه لري. دا د (۱۸۸۴) میلادي کال کیسه ده.

- دا ریښتیا او خورا مهمه خبره ده چې همېشه واورو، کله چې مو واورېدل، بیا پرې خان ښه پوه کړو او کله که مو واورېدل یا نه، خو مهمه دا ده چې د خلکو ظاهر، جامو او د خبرو انداز ته په کتو د هغوی په اړه قضاوت ونه کړو. بلکې مهمه دا ده چې کتاب هېڅکله له عنوانه ونه لولو!
- که چا کم او سپک وبللې او توکې یې در پورې وکړې، دا باید د دې سبب نه شي چې روحیه دې تېټه او یو داسې منفي انګېرونکی انسان درنه جوړ شي چې د نیوکو پر وړاندې یې پښې سستېږي، بلکې تل د سټانفورډ کورنۍ په څېر پر خان باور ولره!



## ۳۷ لوی عمر هیلو ته د رسېدو پر وړاندې خنډ نه دی!

- امیر البحر (فانډربیلټ کرایډ) د خپل عمر تر اویایمو کلونو مخکې د اوسپنې پټلۍ جوړولو په فن کې نه و پېژندل شوی، خو د اته اتیا کلنۍ په عمر کې په دې برخه کې د هغه مهال تر ټولو پېژندل شوی کس وبلل شو.
- سقراط په اتیا کلنۍ کې د موسیقۍ زده کړه پیل کړه.
- ویکتور پاستور په شپېته کلنۍ کې د سپي د داړلو ضد واکسین کشف کړل.
- کولومبوس داسې مهال د امریکا لویې وچې د کشفولو په موخه خپل لومړنی سفر پیل کړ چې له پنځوسو کلونو اووښتی و.
- فولټیر، نیوټن، سپنسر، تالیرینډ او توماس جیفرسن، ټول تر اتیا کلنۍ وروسته د خپلو فعالیتونو او ځیرکتیا په اوج کې وو.
- ګالیلو په درې اویا کلنۍ کې د سپوږمۍ پر مخ شته سیوري کشف کړل.
- که اوس هم داسې ګومان کوې چې د بریا ترلاسه کولو وخت درنه تېر شوی، نو پرېږده چې یو ښه زېری درکړم او هغه دا چې بریا ترلاسه کول په کوم خاص عمر پورې تړلې نه دي، خو په یاد ولره، که بیا هم ویده پاتې شوې، نو امکان لري چې ناکامي ستا د هر نوي راتلونکي کال پر مهال هرکلی درته ووایي!

## ۳۸ د پِنګوین په څېر شه!

د انترکتیکا لویه وچه د ځمکې پر مخ تر ټولو سړه او سخت باد لرونکې سیمه ده، خو له دې سره سره پنګوین نومې حیوانات هملته اوسي. د واورو دپاسه وخت تېروي، ترڅو خپل بچي وپالي او له سړې هوا نه د خپل بچي د ساتلو په خاطر له یوه بل سره مرسته کوي. نارینه

پنګوینان ښځینه هګۍ پر خپلو پښو ږدي ترڅو د خپلو شخو وزرونو په مرسته یې له سړې هوا نه وساتي، ځکه که هګۍ ترې پر ځمکه ولوېږي، سمدستي جامدېږي او یخ یې وهي. له همدې امله نارینه پنګوینان له بشري تصور نه پورته قرباني ورکوي او پوره څلور میاشتې خوراک څښاک نه کوي، ځکه پر خپلو پښو یې هګۍ ایښې وي او نه پرېږدي چې ان د یوې شیبې لپاره هم ځمکې ته ورسېږي، نو له همدې امله پوره څلور میاشتې همداسې ولاړ پاتې کېږي او خپلې وزرې د دایرې په شکل خوروي ترڅو هګۍ له سړو بادونو وساتي.

هو، پنګوین هر هغه څه کوي چې په وس یې پوره وي، د خورا یخ ژمي پر مهال پوره څلور میاشتې له صبر، ودرېدا او انتظار نه کار اخلي ترڅو د هګۍ ساتنه او پالنه وکړي. په دې ټوله موده کې نه پرېږدي چې هګۍ پر یخ پرېوځي، ځکه بیا هګۍ او پکې شته بچي دواړه له منځه ځي.

تر څلورو خورا سختو میاشتو وروسته یو ځل بیا پسرلی پیلېږي، کوچنی پنګوین له هګۍ راوزي، خو بیا هم د خپلو پلرونو پر پښو پاتې کېږي او لومړنی خوراک یې هغه شیدې وي چې پلار یې ورته پوره څلور میاشتې په خپل خورجین کې پټې کړې وي!

څومره حیرانوونکی صبر او زغم دی! نارینه پنګوین پوره څلور میاشتې پر خپلو پښو ولاړ وي ترڅو هګۍ یخې ځمکې ته ونه غورځېږي او کوچنی بچی یې مړ نه شي... په رېښتیا چې ډېره ناشنا پاملرنه ده!

ایا اوس دې د هغې پاملرنې د قوت په اړه څه فکر وکړ چې له تا څخه هغه پنګوین جوړوي چې د پوره څلورو میاشتو لپاره یې هګۍ له پښو نه غورځېږي؟!

ښه نو له پنګوین نه زده کړه وکړه او که څه هم چې سخت بادونه وي، پر خپلو اهدافو ثابت پاتې شه، ځکه په پای کې به خپله بریا لمانځې، که څه هم چې ډېر انتظار دې ورته کړی وي!

## ۳۹ پر ناتوانۍ دې مېخونه مه ټک وهه!

- امام ترمذي چې يو محدث او د «سنن الترمذي» په نوم د احاديثو د يوه مشهور کتاب ليکوال دی؛ ړوند و، خو د قوي حافظې د يوې بېلگې په توگه به يادېده. هغه د ځان په اړه وايي:
يوه شيخ مې زما د ازمويلو لپاره يو پېچلی حديث راته واوراوه، ما له پيله تر پايه همغسې ورته ولوست لکه څنگه چې يې را اوروله و او يوه غلطي مې هم پکې ونه کړه، نو راته ويې فرمايل: «ستا په څېر کس مې تر اوسه نه دی ليدلی.»
- سعيد بن المسيب په يوه سترگه ړوند و، خو په پراخ علم او ژورې فقهې درلودو سره پېژندل کېده او د «فقهاوو فقيه» لقب ورکړل شوی و.
- اديب او مفکر، طه حسين په ماشومتوب کې په يوې داسې ناروغۍ اخته شو چې وروسته د ده د بې پروايۍ او ناپوهۍ له امله يې د سترگو ديد بېخي له منځه ولاړ. په (۱۹۷۳) ميلادي کال کې يې تر خپل وفات يوه ورځ مخکې د ملگرو ملتونو له لوري د انساني حقوقو جايزه ترلاسه کړه.
- د امريکا د متحده اياالاتو پخوانی ولسمشر «فرانکلين روزولټ» چې په بې سارې وړتيا او ژوندي زړه درلودو او ورزشي فعاليتونو ترسره کولو مشهور و، د (۱۹۲۱) ميلادي کال په اوړي کې په يوې بې رحمه ناروغۍ چې د ماشومانو فلج يې بولي؛ اخته شو، خو له دې سره سره د امريکا دوه دېرشم ولسمشر شو. يوازې دا هم نه، بلکې نوموړی لومړنی امريکايي ولسمشر دی چې درې خلې په ولسمشريزو ټاکنو کې بريالی شوی.
- د اتلسمې پېړۍ د تر ټولو مشهور رسام «ريچارډ فافرو» د سترگو ديد د ړندوالي تر حده کمزوری و او عقل يې هم سم کار نه کاوه.
- اندلسی ژبپوه «ابن سيده علي بن اسماعيل» ړوند و.

- لوی تابعي او جلیل القدر فقیه «عطاء ابن رباح» ګوډ او ړوند و.
- مشهور اموي شاعر «الکمیت بن زید الاسدي» کوڼ و.
- د مشهور ایټالوي فزیکپوه «مارکوني» غوږونه ډېر غټ وو. مور یې دا یو نېک فال وباله او ویې ویل: په خپلو غټو غوږونو سره کولای شي چې خورا ټیټې او کمزوري غږ هم واوري. د هغې له هیلې سره سم همداسې وشول او زوی یې د راډیو مخترع شو!

## ۴۰ جنرال موټرز او ناکامه مدیر!

د جنرال موټرز (General Motors) د موټر جوړولو لوی شرکت اصلي مالک «جنرال موټرز» د ژوند په اصولو خورا پوه سړی و. کله چې یې عمر ډېر شو، ویې غوښتل چې تر خپلې مړینې مخکې د خپل شرکت په راتلونکي وضعیت ډاډه شي، له همدې امله یې خپل زامن او لمسیان را ټول کړل او یوه داسې کمېټه یې ترې وټاکله چې د شرکت د راتلونکي پوه او بریالي اجرائیوي مدیر د موندلو لپاره په ورځپاڼو کې اعلان ورکړي ترڅو تر ده وروسته د شرکت مشري پر غاړه واخلي او د معیار ساتنه یې وکړای شي.

دې کمېټې یو داسې کس غوره کړ چې ټولو تحصیلي اسنادو یې د ژوند په ټولو چارو کې پر حیرانوونکې بریا دلالت کاوه او دا چې هغه هېڅکله نه و ناکامه شوی. کمېټې د دې سړي نوم او بیوګرافي خپل نیکه، جنرال موټرز ته وړاندې کړه ترڅو د شرکت د اجرائیوي مدیر په توګه یې ومني، ځکه د دوی په باور دا سړی دې پوستې ته تر ټولو مناسب کس و، خو دوی ټول هغه مهال سخت هک حیران شول چې نیکه یې د دوی وړاندیز رد کړ او دا دلیل یې ووایه چې دا سړی په خپل ژوند کې هېڅکله نه دی ناکامه شوی، نو د دې وړ نه دی چې د شرکت د اجرائیوي مدیر په توګه وټاکل شي، ځکه اصلاً ناکامي یې نه ده تجربه کړې!!!

بیا یې یو داسې کس ورته معرفي کړ چې څو ځله ناکامه شوی او بیا بريالی شوی و. جنرال موټرز همدا سړی د خپل شرکت د اجرائیوي مدیر په توګه غوره کړ. پایله دا شوه چې د نوموړي مدیر په وخت کې جنرال موټرز شرکت خورا حیرانوونکی پرمختګ وکړ او ټولې نړۍ ته یې ځانګې خورې شوې.

- په ریښتیا چې جنرال موټرز خورا حکیم سړی و، تاسې یې لږ د بریا فلسفې ته ځیر شئ. د هغه له نظره ماتې او را پرځېدل د بریا راز دی، ځکه د ناکامۍ سختې شیبې یا له انسانه یو داسې بريالی کس جوړوي چې په ستونزو سره د مخ کېدو وړتیا پکې زیاته وي او دا ور زده کوي چې که هر خل راوغورځېد، باید بېرته پورته شي او یا ترې په حقیقي معنا یو داسې ناکامه انسان جوړوي چې تل به د تیاره ژوند په حاشیه کې پروت وي!
- کله چې انسان له ناکامۍ سره مبارزه کوي، داسې تجربې لاس ته راوړي چې په هېڅ پوهنتون کې یې نه شي زده کولای. په دې توګه په راتلونکې کې هېڅکله هم د ناکامۍ احتمالاتو ته پاملرنه نه کوي، بلکې پرته له دې چې ورته ودرېږي او ورته ځیر شي، ناکامۍ ته په نږدې اینښي لوښي کې یې اچوي، ځکه ژوند دغه ډول خلکو ته یو درس ورښودلی او هغه دا چې: ناکامي د بریا ترلاسه کولو پر لور قدم پورته کول دي، خو په دې شرط چې لومړی پر الله تعالی او بیا پر خپل ځان او خپلو وړتیاوو باور ولري او پرته له دې چې د ناکامۍ په تمځای کې ډېر وخت ودرېږي، ژر تر ژره یې له خنډونو تېر شي!

## ۴۱ د سقراط نصیحت

وایي یو سړی په سفر روان و، د اولمپ غره لټون یې کاوه. د سفر په جریان کې له سقراط سره مخ شو، له هغه نه یې هیله وکړه چې لارښوونه

ورته وکړې. سقراط ورته ووېل:
«اوس چې دې اولمپ غره ته د رسېدو اراده کړې، نو بشپړ باور ولره چې تر دې وروسته چې هر قدم اخلې، هغې ته دې ور نږدې کوي.»

## ۴۲ له دوی وتښته!

که له منفي پالو سره واوسېدې، هيلې دې فلج کوي، ژوند دې پيکه کوي، ورتياوې دې درڅخه اخلي او پر ځان باور درلودل دې وژني، تر دې چې بيا د دې پر ځای چې د خپل ژوند پر شرايطو برلاسی وې، د هغو قرباني درڅخه جوړېږي.
د يوه کار د ترسره کولو امکان پر خپل ځان او خپلو وړتياوو په باور درلودو پورې اړه لري، يعنې هېڅ کار تر هغې نه شې ترسره کولای ترڅو چې يې د ترسره کولو لپاره پر خپل ځان او خپلو وړتياوو باور ونه لرې او لومړی يې په خپل ذهن کې ترسره شوی ونه بولې، نو ښايي چې په باور سربېره، لومړی هغه کار په خپل ذهن کې ترسره شوی وبولې، ګنې بيا يې په عملي ډګر کې هېڅکله نه شې ترسره کولای.
ډېر داسې خلک شته چې دلته هلته د وېرې، شک او ناتوانۍ افکار خپروي، نو له دغه ډول منفي پالو نه وتښته او ان که يوازې کېناستو ته هم اړ شوې، هېڅکله ورسره ملګرتيا مه کوه!

## ۴۳ د ستورو لټون وکړه!

د دويمې نړۍ والې جګړې پر مهال يوه پوځي ته امر وشو چې د نظامي تمرين لپاره د پوځ يوه روزنځای ته ولاړ شي. ښځه يې هم مجبوراً نوي ځای ته ورسره ولاړه، خو هغه ځای يې نه خوښېده. کله چې به يې خاوند د تمرين لپاره روزنځای ته ولاړ، هغه به يې يوازې پرېښوده. د هغه ځای توده هوا ورته د زغملو وړ نه وه، هېڅوک به نه وو چې خبرې يې ورسره کړې وای. اخر خبره دې ځای ته ورسېده چې خپل پلار ته يې يو

لیک واستاوه چې پکې لیکلي یې وو:
«غواړم خاوند مې پرېږدم او بېرته ستاسې خوا ته درشم.»
پلار یې ورته دا دوه کرښې ځواب را واستاوه: «د زندان تر اوسپنیزو میلو شاته دوه بندیان پراته دي، یوه یې پر مخامخ غځېدلې لارې سترګې ښخې کړي او اخوا دېخوا نه ګوري، خو هغه بل سر پورته کړی او بره ستورو ته ګوري.»
هغې چې کله د خپل پلار دا دوه کرښې ځواب ولوست، سخته خجالته شوه او بیا به یې همېشه د اسمان ستورو ته کتل. هغې ورو ورو له کلیوالو سره ملګرتیا جوړه کړه، هغوی هم مینه ورکړه او که په کلي کې به یې کوم څه ډېر خوښ شول، څو شپې وروسته به ورته کلیوالو په ورین تندي ډالۍ کول!
نومورې ښځه وایي:
«دښته بدله شوې نه وه، بلکې زه په خپله بدله شوم او ورسره مې ذهني لیدلوری هم بدل شو.»
هغې په دې توګه وکولای شول چې خپله دردوونکې تجربه په یوې بریالۍ کیسې بدله کړي!

- ګرانه لوستونکیه! ته هم کولای شې چې له خپلو تجربو یوه داسې هینداره جوړه کړې چې خپله اصلي څېره پکې ووینې؛ داسې یوه څېره چې له مخې یې یو پیاوړی، بریالی او مبارز روح لرونکی انسان درڅخه جوړ شي او را پرېوتو او ماتې ته غاړه نه ږدي.
- ته باید له خپلې ناکامۍ د داسې یوې تجربې په توګه کار واخلې چې یوه ورځ یې په ویاړ سره خلکو ته وویلای شې، څکه تا د الله په مرسته وکولای شول چې د ناکامۍ په زړه ماتوونکو انګېزنو برلاسی شې.
- یوازې خپل ذهني لیدلوری بدل کړه، مثبت انګېرونکی او ... من واوسه، د تل لپاره ښه بدیلونه لټوه او خپل نفس ... یوازې

یوه اختیار لرلو مه مجبوروه، ځکه دا دې مجبوراً په راپرځېدو محکوموي.

- د سترګو د دید ساحه دې پراخه کړه، تر لرې لرې وګوره، د مثبت فکر نیلي دې همداسې غښتلي پرېږده او له دې سره پر خپل مهربانه رب ښه ګومان هم ولره!

## ۴۴ کارګر و، وزیر شو!

سعودي کارګر د یوې سختې ګرمې او نمناکې ورځې په پای کې د اوبو د یخچال خوا ته ورغی چې اوبه وڅښي، کړی لویه ورځ سوځوونکي سره لمر ته تر سخت کار کولو وروسته ستړی او بې سیکه شوی و، خولې ترې روانې وې، خو همدا چې ګیلاس یې له یخو اوبو ډک او خپلو شونډو ته نږدې کړ؛ یو امریکایي انجینر راغی او په غوسه یې ورته وویل: ته یو عادي کارګر یې، تا ته نه ښایي چې انجینرانو ته له خانګړو شویو اسانتیاوو استفاده وکړې!

تړی کارګر بېرته خپل کار ځای ته ستون شو، خو تر دې پېښې وروسته به یې هره ورځ فکرونه کول او له ځانه به یې پوښتل: ایا کولای شم چې زه هم یو انجینر او د دوی په څېر له خانګړو اسانتیاوو برخمن شم؟!

پر خپل رب یې توکل وکړ، پخه اراده یې وکړه، لومړی یې د شپې او بیا د ورځې له لوري درسونه پیل کړل او تر ډېرو کلونو هڅو او ستړیاوو وروسته یې منځنۍ دوره پای ته ورسوله. بیا د خپل شرکت په پیسو امریکا ته ولاړ، هلته یې په انجینرۍ کې لسانس واخیست او بېرته خپل هېواد ته راستون شو.

تر دې وروسته به یې په خپل کار کې پوره خواري کوله او ستړیاوې به یې ګاللې تر دې چې په شرکت کې لومړی د یوې وړې برخې، بیا د یوې څانګې او وروسته د شرکت عمومي مدیر شو تر دې چې په پای کې یې لوی پرمختګ وکړ او د شرکت معاون وتاکل شو!

بیا داسې پېښه شوه چې یوه ورځ یې هماغه امریکایي انجینر خوا ته راغی، دوی دواړو په دې شرکت کې کلونه کار کړی و. ویې ویل: غواړم زما له رخصتۍ سره موافقه وکړې؛ او هیله لرم چې دا خبره زما د رسمي وظیفې پر مهال د اوبو د یخچال له هغې پېښې سره ونه تړې!

ده په مینه ځواب ورکړ: زه د زړه له تله ستاسې مننه کوم چې زه مو هغه مهال له اوبو څښلو منعه کړم. سمه ده چې هغه مهال دې له ما سره بد وکړل، خو اوس چې په کوم ځای کې یم، دا د الله تعالی تر لورېینې وروسته د همغې پیښې برکت دی!

هو، د یوه شرکت دا عادي کارگر یو مهال د پترولو راویستلو د یوه خورا لوی شرکت (Aramco Al Saudia) رئیس شو او اوس د سعودي د پترولو وزیر دی.

دا د پخواني سعودي کارگر او اوسني وزیر، انجینر «علي النعیمي» د ژوند لنډه کیسه وه!

## دمه!

- که همدا خبرې یوه بل داسې کارگر ته چې د خپل نفس په ژورو کې یې د ناکامۍ لپاره شاړه ځمکه لرلای، ویل شوې وای، نو لیدلې به دې وای چې د ټیټ همت او را پرځېدو ونې یې په ځمکه کې څنګه ریښې غځولې؟! تر دې چې بیا به یې ریښې له منځه وړل د هېچا د وس خبره نه وه!
- داسې فکر وکړه چې ته د همدې کارگر پر ځای یې او یو لوی مسوول کس د رټنې په نظر درته گوري او بیا درته ناوړه کلمې له خولې وباسې، دا مهال به دې احساس څه وي؟! پر دې خبره فکر وکړه چې بریالي کسان څنگه په خپلو نفسونو کې د ماتې احساسات د بریا په شېبو بدلوي؟! فکر وکړه چې تر دې هر څه وروسته دوی څنگه د ځان لپاره لوی هدفونه ټاکي او په

دي وسوسه ځان نه مشغولوي چې نور خلک د دوی په اړه څه نظر لري؟!
نو که له همداسې کوم حالت سره مخ شوی یې، له دې کیسې ګټه واخله او له هرې هغې ناوړه کلمې چې ته یې دردنولی یې، داسې یوه لمبه جوړه کړه چې د غوره والي او لوړوالي پر لور دې د بریا لاره رڼا کوي!
خو پام دې وي چې داسې کوم زندان ترې جوړ نه کړې چې د ترخې ناکامۍ تر اوسپنیزو میلو شاته پکې بندي وې!

## ۴۵ خپلو ژورو ته ښه غور ونیسه!

د امریکا د کولمبیا ایالت په یوه پوهنتون کې یو زده کوونکی د ریاضیاتو یوه لېکچر اورېدو ته ورغی، د سالون په اخر کې کېناست او شېبه وروسته کرارې ویده شو. کله چې د لېکچر په پای کې د زده کوونکو په شور له خوبه را ویښ شو او تختې ته یې وکتل، ویې لیدل چې دوکتور صیب دوه مسئلې پرې لیکلې، نو په منډه منډه یې خپلې کتابچې ته ورسولې او له سالونه ووت.
کله چې کور ته راغی، د مسئلو د حل په فکر کې شو. خورا سختې پوښتنې وې، د پوهنتون کتابتون ته ولاړ، لازم مراجع یې ورته پیدا کړل او تر څلورو ورځو وروسته په دې وتوانېد چې لومړنۍ مسئله حل کړي، خو د ګاللې ستړیا له امله پر دوکتور صیب سخت غوسه و!
د دوکتور صیب د یوه بل لېکچر اورېدو ته ورغی، د لېکچر په پای کې دې خبرې ته سخت حیران شو چې دوکتور ترې ولې کورنۍ دنده ونه غوښته؟! نو د هغه خوا ته ورغی او ورته ویې ویل: دوکتور صیب! د لومړنۍ مسئلې په حل کې مې څلور ورځې خواري وکړه او په څلورو پاڼو کې مې حل کړه!
دوکتور صیب هک حیران شو، ویې ویل: ما خو تاسې ته کومه کورنۍ

دنده نه وه درکړې، هغه دوه مسئلې چې مې زده کوونکو ته پر تخته لیکلې وې، دوه داسې مثالونه دي چې علم يې په حل کولو کې ناکامه شوی دی!!
هو، د دوکتور صیب دا خبره هغه منفي فکري قناعت ته اشاره کوي چې ډېری خلک يې د داسې مسايلو د حل کولو له فکره را گرځولي. که دا زده کوونکی هغه مهال ویښ وای او له دوکتور صیب نه يې د دې مسایلو تشریح اورېدلې وای، هېڅکله يې د دې یوې مسئلې د حل په اړه فکر نه کاوه. دا مسئله لا تر اوسه هم په هماغه پوهنتون کې په همغو څلورو پاڼو کې زده کوونکو ته ښودل کېږي.
همدا غلط فکري قناعتونه او وژونکي منفي عادتونه هغه څه دي چې انسان يې له امله له خپلو وړتیاوو کار نه اخلي، ځکه په شاوخوا کې یې چې کوم خلک دي، د ده په زړه کې دا وهم ور اچوي چې که هڅه یې وکړه، خامخا به يې ناکامي نصیب شي!
یوازې یوه پوښتنه:
که دا زده کوونکی د دوکتور صیب له خوا د دې دوو مسئلو د تشریح پر مهال ویښ وای او له هغه يې اورېدلای چې علم د دې دوو مسایلو له حل نه عاجز دی، نو ایا دی به يې د یوې په حل کولو بریالی شوی وای؟!
په خپلو ژورو کې هغه اواز ته غوږ ونیسه چې درته وايي:
«ته کولای شې چې د ناکامۍ له خنډونو تېر شې.»
هو، په دې خبره باور ولره!



## پوښتنه!

پوښتنه دا نه ده چې ایا ناکامه به شې که نه؟ بلکې پوښتنه دا ده چې که ناکامه شوې، څه ډول چلند ورسره کوې؟!
(جان ماکسویل)

## ۲۷ له خپل قاموسه یې لرې کړه!

هغه کلمه چې کولای شي په ژوند کې ستا بریا یقیني کړي، یوازې له اوو حروفو جوړه ده او هغه د «کولای شم!» کلمه ده. دا کلمه په هره ژبه کې خورا پیاوړې کلمه بلل کېږي، داسې یوه کلمه ده چې که پر پیاوړتیا او اغېزمنتوب یې باور وشي، داسې یوه وسیله ترې جوړېږي چې سړی پر خپلو وړتیاوو باور کولو ته هڅوي چې له لارې یې بیا خپلو اهدافو ته پرې رسېږي. عجیبه دا ده چې له دې کلمې نه مخکې د (نه) د ټکي په راوړلو سره له هغې «نه شم کولای!» کلمه جوړېږي او دا د بریا او ناکامۍ ترمنځ ښکاره توپیر دی!

تاریخپوهان وایي: په امریکا کې اکثره مهم اختراعات له دې سره سره شوي چې خلکو به یې په اړه د ناشونتیا خبرې کولې. د مثال په توګه د هغه مهال په ورځپاڼو کې به دا ډول له رېشخنده ډکې خبرې ډېرې خپرېدې او خلکو به په راتلونکي کې نوموړي اختراعات ناشوني بلل، دا سره له دې چې مخترعین به یې په شونتیا باوري وو:

- هر څوک چې د موټر په وسیله په یوه ساعت کې د (۳۰) میله لارې وهلو خبره کوي، یقیني ده چې ډېر ژر به په نفس تنګی اخته شي! (۱۸۴۰) میلادي
- داسې کوم احتمال نه شته چې انسان دې د الوتلو لپاره کومه آله جوړه کړي! (۱۹۰۱) میلادي
- سپوږمۍ ته د سفر نظریه اصلاً پر کم عقلتوب ولاړه او ناممکنه نظریه ده! (۱۹۲۶) میلادي

گرانه لوستونکیه!

څومره په زړه پورې ده چې د اډیسن، رایټ ورونو او فضاء ته د لومړنیو پورته شویو په څېر خلکو هېڅکله د «نه شم کولای!» کلمه نه وه منلې، ګنې اوس به مو له دې شویو ګټورو او ارزښتمنو اختراعاتو خوند نه وای اخیستی. هیله لرم چې ته هم دا نهیلې

کوونکې کلمه په «کولای شم!» بدله کړې. د دې دواړو کلمو ترمنځ یوازې د «نه» حرف دی، خو همدا کوچنی توپیر کولای شي چې ستا د ژوند لوری بدل کړي، نو څنګه دې خوښه ده چې د خپل ژوند له قاموس نه د «کولای شم!» تر کلمې مخکې د «نه» کارېدلی حرف د همېشه لپاره لرې کړې؟!

## ۴۸ تر ناکامۍ وروسته ناممکن کار ترسره کړه!

«انتوني رابنز» مشهور امریکایی لیکوال او ویناوال دی، ډېر کتابونه او مشهورې ویناوې لري. تر ټولو مشهور کتاب یې (نامحدوده وړتیاوې) او (خپلې ویدې وړتیاوې را بیدارې کړه) نومېږي. د هغه ځینې کتابونه په نړۍ کې د تر ټولو ډېرو خرڅېدونکو کتابونو په سر کې هم راغلي.

«انتوني رابنز» د ژبینز اعصاب پېژندنې پروګرام له مؤسسینو څخه دی، د شخصیت جوړونې په برخه کې فعال روزونکی او لیکوال دی او په دې اړه ډېرې لیکنې او تلویزیوني پروګرامونه لري. د هېوادونو مشرانو، د شرکتونو رئیسانو او هر هغه انسان ته چې د خپل ژوند بدلولو هیله لري؛ روزنه او مشورې ورکوي. هغه په دې باور دی چې لویې او حیرانوونکې وړتیاوې په خپله د انسان له داخله سرچینه اخلي.

ګرانه لوستونکیه! لږ تم شه، ایا پوهېږې چې رابنز د خپلې بریا سفر له کومه ځایه پیل کړ؟

کیسه یې واوره:

انتوني رابینز په پیل کې سخت ژوند درلود، اووه کلن و چې مور او پلار یې یو له بله طلاق واخیست، ده به د یوې ودانۍ پیره داري کوله. دا چې ډېر چاغ وو، خلکو به ورپورې خندل. د ځوانۍ پر مهال له طبي معایناتو وروسته ورته معلومه شوه چې د بدن د پړسوب ناروغي لري. هره ورځ به یې فکر کاوه چې څنګه به تر کار ځایه رسېږي؟ ایا خپل وړوکی موټر به یې تر هغه ځایه ورسولای شي او که بیا به د تېر په څېر په لاره کې

رابینز داسې څوک نه لرل چې د ده د هیلو په پوره کولو کې یې ورسره مرسته کړې وای، دی به له ډېرو ستونزو ځورېده. داسې سخت ژوند یې تېراوه چې یو ځل یې ان د ځان وژنې په اړه نیت وکړ، خو بیا ترې تېر شو!

یوه ورځ یې فکر وکړ چې خپل ژوند باید په پوره توګه ښه او بدل کړي، نو همغسې چې هیله یې درلوده، د زده کړو په فکر کې شو او پر دې حقیقت باوري شو چې که یو انسان کولای شي نړۍ بدله کړي، نو خپل ژوند څنګه نه شي بدلولای؟!

هیله یې درلوده چې د امریکا په تر ټولو غوره ودانۍ کې د بحر پر غاړه یو دفتر ولري، دا حالت یې په خپل ذهن کې مجسم کړ او بیا یې د خپلو اهدافو په لیکلو لاس پورې کړ. ویې لیکل چې اوس څه کولای شي؟ یو کال وروسته او لس کاله وروسته څه کولای شي؟ بیا یې نو په پوره کوښښ او پیاوړې ارادې سره د خپلو اهدافو ترلاسه کولو لپاره کار پیل کړ.

هو، د انتوني رابینز ژوند په بل مخ واووښت، اوس نو هغه په امریکا کې تر ټولو لوی مشاورتي دفترونه او یوه ځانګړې الوتکه لري او له دې ټولو سربېره د امریکا تر ټولو مشهور ویناوال هم دی!

هغه وايي: یوه ورځ چې د ژبنیز اعصاب پېژندنې پروګرام د دورې وړاندې کولو ته پر لاره وم او خپله ځانګړې الوتکه مې رهبري کوله، لاندې پر سړک مې د موټرو اوږده کتارونه او د خلکو ګڼه ګوڼه ولیده، وویرېدم چې ګډون کوونکي ښایي له همدې امله ونه شي کولای دورې ته حاضر شي، خو هغه مهال سخت هک حیران شوم چې پوه شوم دا ټوله ګڼه ګوڼه د هغو خلکو وه چې زما دورې ته را روان وو. دا مهال مې هغه وخت را یاد کړ چې یوازې دولس کاله مخکې د یوې ودانۍ پیره دار وم، هېڅ مې نه درلودل، خو اوس دا دی له خپل ښښان لرونکي کور نه چې د ځان او خپلې کورنۍ لپاره مې اخیستی و، په خپله ځانګړې الوتکه کې یوې

روزنيزې دورې ته روان وم. ما پر دې خبره پوره باور درلود چې که انسان وغواړي، د دې توان لري چې ان ناممکن کارونه هم ترسره کړي!
انتوني رابينز د خپلې تجربې خلاصه داسې بيانوي:
ځان ته مې داسې داخلي آب و هوا برابره کړې وه چې زما عقل او وړتيا به يې تغذيه کوله ترڅو موندنې او نوښت وکړای شم. داسې دننني آب و هوا چې زما تلوسه به يې زياتوله ترڅو هغه څه شم چې ما غوښتل. داسې دننني آب و هوا چې زما په داخل کې به يې د دايمي منني تلوسه زياتوله ترڅو د هغه مقام او ارزښت له امله شکر وباسم چې ترلاسه کړي مې وو.
ځان ته مې اهداف وټاکل، هره ورځ به مې خپل عقل ته دا ډول ښکاره او دقيق پيغام استاوه: زه ښکاره او ټاکلي اهداف لرم. له همدې امله وه چې زما لا شعوره ضمير زما افعال او افکار د هغو اهدافو ترلاسه کولو پر لور رهبري کړل چې ما غوښتل. دا تګلاره عملاً زما په اړه بريالۍ شوه، نو امکان لري چې ستاسې په اړه هم بريالۍ شي.!
ګرانه لوستونکيه! سر له همدا اوسه خپل اهداف وټاکه، په يوه کاغذ کې يې وليکه، لنډمهالي اهداف وي او که اوږدمهالي. په خپل ټول توان سره يې د ترلاسه کولو هڅه وکړه. هر وخت يې په ياد لره، خو پام دې وي چې هېر يې نه کړې، ترې تېر او ويده نه شې. د خپل کتابتون پر الماري، يخچال، آئينه يا کوم داسې ځای يې را وځړوه چې هره ورځ يې ووينې. په لوړ غږ يې ووايه، د ويلو پر مهال يې يوه ژوره ساه واخله او داسې وبوله چې ټول دې ترلاسه کړي دي، خو له خپل ځان سره ريښتيني واوسه، سخت اهداف ځان ته مه ټاکه چې مات دې نه کړي.
داسې اهداف هم نه چې له وسه دې پورته وي او تل په ياد لره چې انتوني رابينز يوازې د يوې ودانۍ بې وزله پيره دار او يو پرسېدلی سړی و چې خلکو به ورپورې خندل!

## ۴۹ خپل ځان وومه!

**امرسټن وايي:**
**«ډېر کم خلک تر خپل مرګ مخکې ځان مومي.»**

خو زه وایم چې تر دې هم ډېر کم خلک تر خپل مرګ مخکې د ځان موندنې سفر پیلوي او په دې توګه له ځانونو سره غرونه ناکشف شوې وړتیاوې قبرونو ته ننباسي، پرته له دې چې په ژوندوني د خپل نفس په ژورو کې بندې شوې وړتیاوې وروزي. په موږ کې اکثریت خلک په داسې حال کې مري چې لوی رازونه او هغه مهم شوی پيغام ورسره وي چې الله تعالی د دوی په لاسونو کې ورکړی، خو دوی نه وي لوستی، ځکه دوی هېڅکله پر دې فکر نه وي کړی چې دا پیغام څنګه پرانیزي او ویې لولي؟

ته نو څنګه دا خبره کوې چې هغه وړتیا نه لرې چې هیله یې لرې، په داسې حال کې چې ستا په داخل کې موجودې دي؟

ښه نو تا چې خپله وړتیا نه ده تجربه کړې، نو څنګه به پوه شې چې کوم کار دې له وسې پوره او کوم کار پوره نه دی؟

کېدای شي ته تر هغې ډېرې پټې او ویدې وړتیاوې ولرې چې خوب یې وینې، نو بیا ولې خپل وخت د نورو په نبوغ کې په فکر کولو ضایع کوې؟ ولې هغه وړتیاوې نه را وباسې چې د خپل نفس په ژورو کې یې لرې ترڅو ووینې چې ته څومره ارزښتمن یې؟

ولې یې رڼا ته نه را وباسې او نه یې روزې؟
هیله ده په دې اړه فکر وکړې!

## ۵۰ له خوبه را ویښ شه!

✓ تر ټولو ښه لاره چې خپلې هیلې او اهداف پرې پوره کړې دا ده چې له خوبه را ویښ شې.

- که وغواړو چې یو کار له ستړیا پرته ترسره شي، نو ښه ده چې لومړی د دې کار په زده کولو کې ځانونه ستړي کړو.
- که په دې تمه وې چې بخت به دروازه در وټکوي، نو کېدای شي هغه مهال دې خوا ته دې درشي چې ته به نه وې!

## ۵۱ پرېږده چې نیوکه دربانديې وکړي!

وايي یوه ورځ د حربي پوهنځي رئیس، «ایډوارډ» ولید چې یوازې ناست دی او ژاړي، ایډوارډ دا مهال څوارلس کلن و. کله چې یې ترې د ژړا لامل وپوښت، تر ډېر تاکید وروسته ورته معلومه شوه چې په پوهنځي کې یې له خپلو درېیو تنو ملګرو سره شېبه مخکې جلا جلا لیدلي او هغوی هر یوه بې دلیله یوه یوه لغته وهلی و!

رئیس هغه درې واړه زده کوونکي را وغوښتل، هر یوه یې د ایډوارډ د وهلو لپاره دا دلیل ووایه چې دوی درېیواړو دا اتفاق کړی و چې د باچا ایډوارډ اتم تر پاچا کېدو وروسته وکولای شي هغه ته ووايي چې:

«موږ په لغتو وهلی وې!»

شوپنهاور په همدې اړه وايي:

«بې ارزښته خلک د خطاوو له را منځ ته کولو او دړواغو ویلو خوند اخلي ترڅو د لویانو او لوی اخلاق لرونکو خلکو ارزښت پرې را کم کړي.»

د امریکا د یوه پوهنتون مدیر به همېشه د یوه سړي بد ویل. دا سړی «توماس جیفرسن» د امریکا د متحده ایالاتو پخوانی ولسمشر و چې د خپل ټول ژوند پر مهال د ډیموکراسۍ په ملاتړ او ښو اخلاقو مشهور و. جیفرسن چې کله ولسمشری ته نوماند شو، د پوهنتون نوموړي مدیر یې په اړه داسې وویل:

«که دا سړی مو د هېواد ولسمشر شي، نو د ده په وخت کې به ووینو چې ښځې او لورګانې مو په ښکاره زموږ نافرماني کوي، اخلاقي فضایل به له منځه ولاړ شي او الحاد به خپور شي!»

ښايي تل په ياد ولرې چې خلک مردار شوي سپي ته کورې نه وايي. په همدې توګه پر تا به ستا د ارزښت په اندازه نيوکې کېږي، نو له مبارزې لاس مه اخله او ناکامۍ ته غاړه مهږده. که نيوکه کوونکي دې په بدل اخيستونکو تيږو ولي، ته ورته موسکی شه، ځکه ته پر سمه لاره روان يې. که څوک له نيوکو خلاصېدای شوای، نو د بشريت سردار محمد صلی الله عليه وسلم به ترې خلاص وای، هغه ته يې لېونی، کوډګر، کاهن او څه او څه ونه ويل؟!

دا بايد تل په ياد ولرې چې مخکنيو امتونو هېڅکله نيوکه کوونکو ته ان د هغوی تر مړينې وروسته هم يادګاري څلي نه دي درولي، په داسې حال کې چې لويانو ته يې پر هغوی د خلکو له لورې له شويو پراخو نيوکو سره سره يادګاري څلي درولي!

ښه نو اوس د بريا په معادله پوه شوې؟

د بريا معادله دا ده:

زخمي کوونکی نقد زغمل + کلکه اراده او نه تسليمېدل = بريا

## ۵۳ رزق په څاله کې نه غورځول کېږي!

- يوازينی برياوې چې تلپاتې کېږي او تر شا بد يادښت نه پرېږدي، هغه دي چې د خپلو نفسونو پر وړاندې مو ترلاسه کړي.
- هغه څه وکړه چې په خپلو ژورو کې يې پر سمې والي باور لرې، ځکه ته هېڅکله د خلکو له نيوکو نه شې خلاصېدای.
- پياوړي ګوزارونه شيشه ماتوي، خو اوسپنه لا کلکوي.
- دا د وياړ خبره نه ده چې را ونه پرځېږو، بلکې وياړ دا دی چې تر هر وار را پرځېدو وروسته بېرته را پورته شو.
- الله تعالی هر الوتونکي ته د هغه برخه رزق ورکوي، خو په څاله کې يې ورته نه غورځوي!

## ۵۴ حکیم چرچل!

د برتانيې پخواني لومړي وزیر چرچل یوه غونډه را وبلله، د هېوادوالو لویه برخه یې خبرو اورېدو ته را ټوله شوه. دا مهال یې یو مینه وال پورته شو او په لوړ غږ يې ورته وويل: ښاغلی چرچل! د هېوادوالو ډېره برخه له تا سره ده، ته خورا مشهور شوی یې، دا پنځه زره کسان دې یوازې خبرو اورېدو ته را ټول شوي دي!

چرچل په دې خبره د غرور احساس ونه کړ، بلکې هغه ته یې وویل:

«دوی دې ته راغلي چې چرچل ووینې، نه د دې لپاره چې زما خبرو ته غوږ ونیسي. که همدا اوس اعلان وشي چې زه سبا ته په همدې ځای کې په دار کېږم، نو عجیبه یې مه بوله چې پنځوس زره کسان به راټول شي ترڅو د دار په پړي مې ترل شوی ووینې!»

- بریالی هغه دی چې غرور ته په خپل نفس کې د ځای پیدا کولو موقع ور نه کړي، ځکه کله چې بریالی کس ځان ته د غره کېدو او پر نورو د برلاسي په سترګو وګوري، نو دا په دې معنا ده چې د خپلې بریا ټول بنسټونه نړوي.

نو ځان ته د غره کېدو او پر نورو له کبر کولو ووېرېږه. د چرچل حکمت ته ښه خیر شه او لوړې ځوکې ته د پورته کېدو پر مهال عاجزي خپل شعار وګرځوه!

هو رېښتيا، له دې سره دا هم مه هېروه چې غرور د ناکامۍ لومړنی پوړۍ ده!

## ۵۵ هره لاره چې دې خوښه وي، غوره یې کړه!

یو مسافر د یوه دوه لارې پر سر ودرېد او له یوه سپین ږیري یې وپوښتل:

دا لاره به مې چېرته ورسوي؟

سپین ږیري وویل: ته غواړې چېرته ولاړ شې؟

مسافر وویل: نه پوهېږم!



سپین ږیري وویل: ښه نو، بیا چې دې هره لاره خوښه وي، مهمه نه ده!

## ۵۶ شا ته مه ګوره، دوام ورکړه!

- «ایرین جاسکولسکي» اووه اویا کلن سپین ږیری دی، خو له دې سره سره یې د زړو عمر لرونکو کسانو د سلو او دوو سوه مترو ځغاستې په سیالیو کې ډېر ریکاردونه مات کړي. د دوو سوه مترو ځغاستې په سیالی کې یې تاکل شوې فاصله په (۲۴) ثانیو کې ووهله، په داسې حال کې چې مخکنی ریکارډ (۳۵) ثانیې و!
ایروین وایي:
«د بوډاوالي احساس کول اصلاً یو رواني حالت دی، سره له دې چې زه تقریبا سل کلنی ته نږدې شوی یم، خو لا تر اوسه هم له ځوان طبیعتی، داسې خوند اخلم چې له ما نه په عمر کې شل یا ډېرش کاله کشران خلک یې هم نه شي اخیستی. زه لا هم سیالي کولای او ریکاردونه ماتولای شم.»
- «هیروتادا اتوتاکي» مشهور جاپاني لیکوال او د (هېڅوک پوره نه دی) کتاب خاوند دی، هغه کتاب چې تر څلورو میلیونو ډېرې نسخې یې خرڅې شوې. سره له دې چې دی بدشکله او بې پښو او لاسو پیدا شوی و، خو دې ټولو خنډونو هېڅکله د ځان له ارزښمتن کولو او پر هغې نږی له اغېز غورځولو منعه نه کړای شو چې دی پکې اوسېده!
- هغه مهال چې «بارب جویرا» کوچنی وه، د برقي شارټ په پایله کې یې دواړه لاسونه وسوځېدل چې بیا وروسته ترې له اوږو پرې کړای شول. هغه دې معیوبیت ته تسلیمه نه شوه، بلکې د خپلو خورلڼو له لوري له رېشخند کېدو او ازارېدو سره سره یې خپلې زده کړې پای ته ورسولې، واده یې وکړ او ماشومان یې وزېږول.
بارب، تکواندو پر تکواندو سربېره موټر چلول هم په ښه توګه زده

کړل، داسې چې ښې پښه به يې پر سټيرينګ او چپه پښه به يې پر بريک ايښوده. د خپلو پښو په مرسته به يې پخلی کاوه، جامې به يې بدلولې، ماشومان به يې پاکول، غسل به يې ورکاوه او جامې به يې ور بدلولې.

د بارب په اړه تر ټولو مهمه خبره دا ده چې خان ته د يوې معيوبې په سترګه نه ګوري، ځکه هغه پر دې قادره ده چې له خپلو شاوخوا خلکو سره احساسات او مينه تبادله کړي او لکه هغه چې په خپله وايي:

«حقيقي معيوبيت دا دی چې د انسان زړه له مينې تش او عواطف يې وچ کلک وي.»

له همدې امله ده چې بارب، خپل ماشومان د خپلو پښو په مرسته خپلې سينې ته نږدې کوي او د زړه په مينه يې روزنه او پالنه کوي!

- دا د يوه مشهور انګرېز شاعر، «لارډ ټينيسن» د ماشومتوب کيسه ده. هغه د خپلې نيا په نوم پر يوې ډېرې يوه قصيده وليکله ترڅو د هغې تر مړينې وروسته يې پر قبر کېښودل شي. نيکه يې قصيده ولوسته، خپل لمسي ته يې لس شيلينګ (د هغه مهال روپۍ) ورکړې او ورته ويې ويل: بچيه! دا دې د شعر لومړنی نغده ګټه شوه، خو کولای شم دا هم ووايم چې دا به دې ورستنۍ ګټه هم وي، ځکه په خپلو شعرونو به هېڅ مال را ټول نه کړې!

د ټينسين د نيکه وړاندوينه سمه نه وه، ځکه لمسي يې د لويو انګليسي ژبو شاعرانو په ډله کې لومړی مقام ترلاسه او د خپل شعر له لارې يې ډېر مال را ټول کړ!

- ګرانه لوستونکيه!

کېدای شي څينې مهال دې په داخل کې په ناغوښتل شوې توګه هيله له منځه ولاړه شي، نو له سره راپورته شه، مقاومت وکړه او د چا خبرو ته غوږ مه ږده، ان که تا ته تر ټولو نږدې کس ستا د ناکامېدو خبره هم وکړي!

## ٥٧ مهربانه اوسه!

بخاري په خپل سند سره له ام المؤمنين عايشې رضي الله عنها نه روايت نقل كړی چې هغې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته وويل:
«ايا د احد تر ورځې هم سخته ورځ درباندې راغلې؟»
رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل:
((ستا د قوم له لاسه مې ډېرې سختې ورځې وليدې، خو تر ټولو سخته ورځ د عقبې ورځ وه، كله چې مې بن عبد ياليل بن عبد كلال ته خپل دعوت وړاندې كړ، نو هغسې ځواب يې را نه كړ لكه ما چې غوښت. بېرته ترې را ستون شوم او سخت پرېشانه وم. كله چې مې فكر شو، ومې ليدل چې په قرن الثعالب نومې سيمه كې يم، سر مې پورته كړ، وريځ مې وليده چې سيوری يې راباندې كړی و. چې ورته ځير شوم، جبرائيل عليه السلام مې پكې وليد، را غږ يې كړل:
«الله تعالی تا ته ستا د قوم له لوري شوې خبره واورېده، اوس يې يوه ملايكه درته را لېږلې چې د هغوی په اړه امر ورته وكړې.»
بيا د غرونو ملايكې را غږكړل:
«ای محمده! كه غواړې، دا دواړه غرونه به پرې را يو ځای كړم.»
ما ورته وويل:
«نه، زه هيله لرم چې الله تعالی د دوی په راتلونكو نسلونو كې داسې خلک پيدا كړي چې يوازې د هغه عبادت به كوي او هېڅوک به ورسره نه شريكوي.»
ملايكې راته وويل:
«لكه رب چې دې نومولی يې، ته رېښتيا هم رؤف او رحيم يې.»

- د خپل قوم له لوري وځورول شو، جګرې يې ورسره وكړې، په لاره كې يې ورته اغزي وشيندل او په داسې حال كې چې په سجده پروت و، د اوښ لرې يې په شاټ ورته كېښود او سپكې سپورې يې ورته وويلې، خو هغه صلی الله عليه وسلم له دې

ټولو سره سره د مکې د فتحې پر مهال له صبر او نرمۍ کار واخیست او ویې فرمایل:

«ای د قریشو ډلې! څه فکر کوئ، زه به له تاسې سره څه وکړم؟»

هغوی وویل: د خیر تمه درنه لرو، ته یو مهربانه ورور او یو مهربانه زوی یې.

هغه وفرمایل:

«زه درته همغه خبره کوم چې یوسف خپلو ورونو ته کړې وه:

﴿قَالَ لَا تَثْرِيبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ﴾

«نن ورځ پر تاسې هېڅ ملامتیا نه شته.»

ولاړ شئ، تاسې ټول ازاد یاست!

- محمد صلی الله علیه وسلم په خپلې دې نرمۍ سره موږ ته د بریا بشپړ تصویر رسموي، نو ترڅو چې مو نفسونه د بدل اخیستنې، کینې او دوکې په اور کې سوځي؛ په ژوند کې هېڅ ترلاسه شوې بریا حقیقي بریا نه شو بللی.
- رېښتینی بریالی هغه دی چې په خپلې نرمۍ سره خان ته لاره هواروي او پرته له دې چې په زړه کې یې د ناکامۍ نم پاتې شي، له ټولو خنډونو یې تېرېږي، ځکه که د ناکامۍ نم یې په زړه کې پاتې شي، د ژوند ورځې یې له امله خړې پړې کېږي، نو ښه ده چې په نرمۍ او سوکاله روحیې، سره د ماضي له وخت ضایع کوونکو بې ګټې یادونو او اړیکو ځان خلاص کړئ.
- نرم اوسه او د ماضي یادونه شاته وغورځوه، که څه هم چې درد یې ستا په نفس کې پاتې وي، ځکه په داسې حال کې چې ته لا هم د ماضي په ترخو شېبو کې ژوند کوې، نو له همدې امله هېڅکله د بریا خوند نه شې څکلی!



## ۵۸ له ماتې سره مخامخ کېدو ته تيار شه!

- د ناکامۍ يوازېنی څواب دا دی چې پرې بريالي شو.
(وينستن چرچل)
- اهداف نه يوازې دا چې زموږ احساسات را پاروي او وينبوي يې، بلکې د ژوندي پاتې کېدو لپاره مو يو اساسي شرط هم دی.
(رابرټ شولر)
- فکر، ورپسې سمدستي عمل کول او له ناکامۍ سره مخامخ کېدو جرئت درلودل؛ د بريالي مدير خصلتونه دي.
- دا چې د بحرانونو او اضطراباتو پر مهال خپل درنښت او ثبات وساتې او له ډار او زړه نازړه توب نه لرې واوسې، دا دې د رهبرۍ وړتيا لرلو رينبتينې نښې دي.
- موږ له ناکامۍ نه د بچ کېدو له وېرې ډېرې پيسې لګوو، خو دا د څان روزنې پر وړاندې لوی خنډ دی، څکه زموږ د شخصيت زاويه تنګوي او د نويو موندنو او تجربو ظرفيت مو محدودوي. هېڅ پوهه ترلاسه کول له سختۍ ګاللو او هېڅ تجربه د خطاء او صواب له احتمال نه خالي نه ده. نو که غواړې چې پوهې زياتېدو ته دې دوام ورکړې، بنايي چې د تل لپاره له ناکامۍ سره مخامخ کېدو ته تيار واوسې. (جان جارډينر)

## ۵۹ د سمندر ښکلا ته څير شه!

«اسحاق نيوټن، د ويلشرب کلي په تر ټولو غريبه کورنۍ کې بې مودې وزېږېد. د ده تر زېږېدو وروسته داسې شک کېده چې بنايي ژوندی پاتې نه شي. کونډې مور يې د ده تر زېږېدو لږه موده وروسته بل واده وکړ او دی يې د ده له نيا او نيکه سره پرېښود!
کله چې نيوټن دولس کلن شو، نيا او نيکه يې ښوونځي ته واستاوه، د خپلو ټولګيوالو ترمنځ تر ټولو تنبل او وروسته پاتې بلل کېده، څکه

خپل ډېر وخت به يې د کاغذي الوتکو او د شګو د ساعتونو په جوړولو تېراوه.

تر (۱٦٦۱) ميلادي کال پورې په همدې حالت کې پاتې و، تر دې چې بخت ورسره ياري وکړه او د کيمبرج پوهنتون ته ومنل شو، خو که د تره واسطه يې نه واى، هېڅکله به دې پوهنتون ته نه واى داخل شوى. که څه هم چې په منځنۍ ډول به يې څه ناڅه د ټولګي په درسونو کې هم برخه اخيستله، خو خپل ډېر وخت به يې د هغو څېړنو په ترسره کولو کې تېراوه چې ډېر زيات شمېر علمي بحثونه به پکې وو. د نيوټن تر ټولو لويه لاسته راوړنه د هغه (د رياضياتو او طبيعي فلسفې مبادي) نومې کتاب دى چې تر ننه د بشريت په تاريخ کې تر ټولو لوى ترسره شوى علمي کار بلل کېږي!

سره له دې چې نيوټن د علم، نبوغ، اختراعاتو او موندنو په ټولو ډګرونو کې ډېر ځلېدلى و، خو تر خپل مرګ لږه موده وړاندې يې دا حيرانوونکې خبره کړې وه:

ږزه د هغه ماشوم په څېر يم چې د سمندر په ساحل کې لوبې کوي، کله يو له بله ښکلې ښفاګې او سپينې سنګ ريزې او کله په زړه پورې صدفونه مومي. په داسې حال کې چې حقيقت (علم) د يوه لوى او پراخه سمندر په څېر زما مخې ته روان دى، ما پکې هېڅ نه دي موندلي.ږ

- د ناکامۍ ځنځيرونه پر دغه نابغه داسې را تاو شوي وو لکه لاسبند چې پر مړوند را تاو شوى وي. يتيم و، سينه تنګوونکې بې وزلې ځپلى و، په درسونو کې ناکامه و، په وخت کې يې وبا خپره وه، له هر چا سره يې نه شواى ليدلاى، بدبخت ماشومتوب يې و، مور يې پرېښې و او...
- که دى د دې بدبختيو له ډلې يوې ته هم تسليم شوى واى، نو اوس به په هغو ناکامو کسانو کې شمېرل کېده چې د ژوند د نهيليو په ختو کې نښتي او بيا ترې هېڅکله نه وو را خلاص شوي!

## ۶۰ حکمت!

- یو له معنا ډک حکمت وایي:

«له جدي تلوسې، عزم او پرېکړې سره د خپلې هیلې شا ته پټ شه. یا به بریالی شې او یا به زده کړه وکړې او لوی به شې.»

- «ډینیس ویټلي» وایي:

«ښایي چې ناکامي مو ښوونکې وي، نه دا چې د ارمانونو او هیلو مقبره مو وي.»

## ۶۱ مثبت انګېرونکی واوسه!

- د خندق تر ورځې او تر هغې وروسته چې د مشرکینو تر ټولو پیاوړی جنګیالی عمرو بن عبدود یې په پوره مېړانه راوپرځاوه؛ له علي رضي الله عنه وپوښتل شول: د خندق پر ورځ پر عمرو څنګه برلاسی شوې؟

علي رضي الله عنه وویل:

«زړه مې راته ویل چې پرې برلاسی کېږم به او هغه به مې پر وړاندې را پرځېږي، څکه نو د هېڅ شي پروا مې ونه کړه.»

- حجاج بن یوسف الثقفي له خوارجو سره له جګړې نه تر راستنېدو وروسته د کوفې جومات ته ننووت. خلک جومات ته را ټول شول، حجاج منبر ته وخوت چې خلکو ته خطبه واوروي. دا مهال یې تر پښو لاندې د ممبر لرګی مات شو، د خلکو رنګونه بدل شول او هر یوه د خپل څنګ له ملګري سره پس پس پیل کړ. حجاج چغې کړې:

«دا څه درباندې وشول ای خلکو؟! دا چې د یوه پیاوړي زمري تر پښو لاندې یو کمزوری لرګی مات شو، دومره بدپالي شوئ؟ نارینتوب داسې نه وي!»

• قهرمان فاتح قتیبه بن مسلم رحمه الله د خراسان پر منبر خلکو ته خطبه اوروله، امساء یې له لاسه ولوېده، دښمنانو یې دا یو بد پال وباله او دوستان یې غمجن شول. نوموړي قهرمان د خلکو په ناسمو انګېرنو پوه شو، نو په پوره باور یې وویل:
خبره هغسې نه ده لکه دښمن چې ګومان وکړ او دوست ووېرېد، بلکې هغسې ده، لکه شاعر چې وایي:
«امسا یې وغورځوله او زړه یې قرار شو، لکه د مسافرو په بېرته راتګ چې سترګې یخې شي!»

• د پېښو د تفسیرولو پر مهال مثبت انګېرونکی واوسه، که څه هم چې په ښکاره یکې مثبت ټکی نه وي، ځکه مثبت تفسیر ستا د پیاوړتیا تضمین کوي، پښې دې ټینګوي او په زړه کې دې هیله زرغونوي. په داسې حال کې چې د پېښو منفي تفسیر دې د ناکامۍ او را پرځېدو پر لور دیکه کوي، د پایلو په اړه دې اندېښمن کوي او دې ته دې مجبوروي چې هرې پېښې ته د بدپالۍ په سترګه وګورې.
له یاده مه باسه چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا حدیث باید ستا لپاره د یوې بلې ډیوې په څېر وي. هلته چې فرمایي:
«خیر ته هیله من اوسئ، وبه یې مومئ.»
هیله ده چې تر دې وروسته په خپل ژوند کې ان بدې پېښې هم په منفي توګه تفسیر نه کړې او په منفي نظر ورته ونه ګورې!

## ٦٢ همدومره بس دی!

د ناکامۍ په نهه نوي سلنه پېښو کې هغه خلک ښکېل دي چې د پلمو په جوړلو عادت شوي دي! (جارج واشنګټن)



## تېره به ماته شي!

يوه حکيم خپل زوی ته وويل: تېره ماتوونکی دې د تېرې ماتولو پر مهال ليدلی؟

هغه وويل: هو!

حکيم وويل: کله دې ليدلي چې په څښل سره پر تېره بيا بيا گوزارونه کوي او کله کله خو يې گوزارونه ان سلو ته رسېږي، خو په تېره کې ورکې چاود هم نه ويني؟

هغه وويل: هو، ليدلي مې دي.

حکيم وويل: هغه وروستی گوزار دې هم ليدلی چې ورسره سم تېره ماتېږي؟

هغه وويل: هو!

حکيم وويل: زويه! پر دې بايد پوه شې چې همدا د مخکنيو گوزارونو برکت و چې د تېرې ماتوونکي د کار بابله بې معلومه کړه. نه د وروستني گوزار. يعنې که تېره ماتوونکی نهيلی شوی او وروستی گوزار يې نه وای کړی، تېره به هېڅکله نه وای ماته شوې!

- ډېری خلک خکه د خپلو کارونو بنې بايلې له لاسه ورکوي او ناکامېږي چې له نيمې لارې بېرته را گرځي او د پايلې تر معلومېدو او مېوې بخښدو مخکې برې نهيلي برلاسې کېږي!

شعر

،د حاجت پر مهال د صبرناک سړي خوی خپل کړه او د هغو خلکو خوی خپل کړه چې د نښوتلو لپاره همېشه دروازه ټکوي،

## خان ته شرايط برابر کړه!

،مهند ابو ديه، د جدې ښار په يوه خورا بې وزله سيمه کې وزېږېد، هملته را لوی شو. خپلې لومړنی زده کړې يې وکړې او د منځنی دورې

لومړني کلونه یې هم همدلته تېر کړل. هغه د نورو ماشومانو په څېر یو عادي ماشوم و، خو دا ځانګړنه یې درلوده چې د شیانو د حقیقت پېژندلو سخت شوقي و. د برقي او لوبو سامان آلاتو د برزو دقیقه څېړنه به یې کوله. دې کار ته یې تولګیوال سخت حیران وو او کله کله به یې ورپورې خندل هم.

د پلار د دندې ځای د بدلېدو له امله مجبور چې ریاض ښار ته ولاړ شي، خیلي منځنی او ثانوي زده کړې یې هلته ورسولې او بیا د ملک فهد د پټرولو او معادنو پوهنتون ته داخل شو. د فزیک له مضمون سره د ډېرې مینې له امله یې په فزیک کې د تخصص پرېکړه وکړه. له دې سره یې یوازې پر همدې اکتفاء ونه کړه، بلکې د پوهنتون له زده کړو سربېره یې خپل ټول وخت د خپلو اختراعاتو او تجربو بشپړولو ته ځانګړی کړی و. دوه وېشت اختراعات یې په نوم ثبت شول. تر ټولو مشهوره اختراع یې هغه سمندري اوبه وچې د ,عربو شاهین، نوم پرې کېښودل شو. نوموړې اوبه د ,٦٥٢٥، متره په ژوروالي د سمندر تل ته کوز شو او په نوګه تر ټنګان بومې حاباتي اوسل چې په سمندر کې ,٦٥٠٠، متره زور نللی و، مخکې شو.

ابو دیه وایي: د څلورو کالو په لړ کې چې دا اوبه مې په کې اختراع کاوه، ,٢٢٢، ځله مې د خلکو له خولې د ,ناممکن، کلمه واورېده او په وروستي ځل راته د اوسلوسو نود حاباتي انجنیر دا خبره وکړه. خو ما به هر ځل د ,ناممکن، کلمه له ځانه سره لیکله او کوم ارزښت به مې نه ورکاوه. ځکه له مبارزې سره مې مینه درلوده!

د ,٢٠٠٨، میلادي کال د اپریل میاشتې په ,٣، نېټه د مهند ابو دیه ګاډی د سعودي له جنوب نه ریاض ته پر لاره له سونټرې سره مخ شو. کله چې جوړولو ته یې ور کوز شو. د لوجکانو بوه ګاډي وواهه چې له امله یې دماغو سخته ضربه ولېده او وروسته ترې روند شو. بیا ترې ډاکټرانو سهواً ښي پښه هم پرې کړه او تر ټولو ورځو پورې یې هوښه پروت و.

دې وايي: له بې هوښۍ نه تر راوتو وروسته مې ان يو ځاځکې اوښکه هم تويه نه کړه، په داسې حال کې چې يوې جريدې د همدې پېښې په اړه ليکلي وو: ((د سعودي مخترع مهند ابو ديه د ژوند کيسه په بوه ټکان ورکوونکې پېښه کې پای ته ورسېده!))

دی وايي: دا عنوان تر پېښې هم سخت راته تمام شو، ځکه مطلقه نهيلي پکې له ورايه ښکارېده.

تر دې پېښې وروسته مهند د تلوسې په يوې داسې بلې شغلې بدل شو چې نړدې وه خپل شاوخوا شيان يې له ستونې تېر کړي وای. هغه په خپله يوه مرکه د خپلې تلوسې په اړه وويل: زه يو داسې څوک يم چې ننګونو ته ښه راغلاست وايم او الله تعالی ترې ښه رزق راکوي!

دې سعودي مخترع هغه وخت خلک سخت حيران کړل چې تر دې پېښې وروسته يې څه باندې (١٠٠) لوی ليکچرونه ورکړل او له څو اروپايي هېوادونو يې ستاينليکونه ترلاسه کړل.

مهند اوسمهال د فضايي الوت د هندسې په برخه کې چې په نړۍ کې خوار سخت تخصص دی؛ خپلې زده کړې بشپړوي. مهند يو مرکز هم پرانېستی چې نوم يې د اختراعاتو د فن سعودي مرکز دی!

د مهند ژوند تر پېښې وروسته د ډېرو خلکو په زړونو کې تلوسه ژوندۍ کړه او ښايي هر هغه څوک چې د مهند کيسه لولي، په زړه کې يې خپلو اختراعاتو ته د دوام ورکولو تلوسه لا پياوړې شي.

کله چې له مهند نه تر دې پېښې او ښې پښې او سترګې له لاسه ورکولو وروسته د هغه د ورځنيو بوختياوو په اړه پوښتنه وشوه، نو ويې ويل: د بلايستيشن لوبغاړي د لومړي ځل لپاره دا لوبه د لا هڅېدنې لپاره په مشکل سره پيلوي، نو اوس زه هم د تېر ژوند په څېر ژوند کوم، خو لږ په سختۍ.

کله چې ترې وپوښتل چې دې پېښې څه در زده کړل؟

ويې ويل: زه د غشي په څېر يم، داسې قوت ته اړتيا لرم چې شا ته مې ښه کش کړي ترڅو په پوره قوت سره مخامخ خوشې شم!

هغه وايي: په خپله کوټه کې مې د حکمت خبرې ځوړندې کړې، يوه پکې دا ده: کله چې درته شرايط برابر نه وي، په خپله يې ځان ته برابر کړه.

هغه زياتوي: په خپل دفتر کې مې دا ليکلې وينا هم ايښې چې وايي: «کله چې خلکو درپورې وخندل، نو پوه شه چې پر سمه لاره روان يې!» ګرانه لوستونکيه! زه باور لرم چې د مهند کيسې به ډېر الهام او له ستونزو سره د مبارزې ډېر ځواک در ببنلی وي.

## ٦٥ کله چې بادونه لګي!

يوه ځمکوال د سمندر پر غاړه يوه ټوټه زراعتي ځمکه درلوده، هغه به ډېر مهال کارګرو ته د خپلو پرېمانه اړتياوو يادونه کوله، مګر ډېرو خلکو به د ده په ځمکه کې کار کولو ته زړه نه ښه کاوه، ځکه دوی به له هغو سمندري طوفانونو وېرېدل چې په پراخ سمندر کې به يې لويې څپې را پورته کولې او بيا به يې کورونه او فصلونه له منځه وړل. له همدې امله، کله چې به دا ځمکوال په خپله ځمکه کې د کار کولو لپاره له غوره کېدونکو کارګرو سره مخ کېده، نو ټولو به منفي ځواب ورکاوه. په پای کې د منځني عمر يو ډنګر او د لنډې ونې خاوند کس د دې کار لپاره را وړاندې شو.

ځمکوال ترې وپوښتل: دا کار به وکړای شې؟

ډنګر سړي ځواب ورکړ: هو، زه هغه څوک يم چې ان د سخت باد او طوفان پر مهال هم نه ويده کېږم!

که څه هم چې ځمکوال د دې سړي ځواب ته هک حيران و، خو بيا يې هم هغه په خپلو ځمکو کې په کار وګوماره، ځکه نور يې داسې څوک نه موندل چې دې کار ته حاضر شوی وای!

ډنګر سړي به په ځمکو کې په پوره خوارۍ سره کار کاوه، زحمت به يې ګاله. له لمر ختو تر لمر لوېدو به يې کار کاوه او په دې خبره ځمکوال د

ډنگر سړي له کاره سخت خوښ و.

یوه شپه چې د ساحل له لورې ډېر سخت طوفان را والوت، خمکوال له خپلې بسترې په خېز را پورته شو، لاسي بجلي یې را واخیسته او په منډه هغې کوټې ته ورغی چې ډنگر سړی به پکې ویده کېده. په زوره زوره یې وخوځاوه او په لوړ غږ یې ورته چیغې وهلې: پورته شه، سخت طوفان را روان دی، مخکې تر دې چې هر څه له منځه ولاړ شي، د خمکې احوال واخله!

ډنگر سړي د خپل بادار خبرو ته کوم ارزښت ور نه کړ، بېرته په خپله بستره کې وغځېد او په ډاډ سره یې وویل: نه باداره! ما مخکې درته ویلي وو چې زه هغه څوک یم چې د طوفان را الوتلو پر مهال هم ویده کېږم!

خمکوال د ډنگر سړي په خواب له غوسې خوټېده، زړه یې و چې ښې چیغې پرې ووهي، خو د دې پر ځای چې په دې خبرو خپل وخت ضایع کړي، په منډه له کوره ووت چې د طوفان څه چاره وکړي. خمکوال هغه مهال سخت حیران شو چې هر څه یې روغ او پر خپل ځای ولیدل، غوا په خپله کوټه کې ولاړه وه، مرغۍ په خپلو ځالو کې بندې وې، دروازو ته اوسپنیز سیخان اینبودل شوي وو او کړکۍ کلکې پورې شوې وې، لنډه دا چې هر څه په خپل خپل ښځواني حال وو.

خمکوال پوه شو چې د ډنگر سړي هدف له هغې خبرې څه و، ځکه نو بېرته پر خپلې بسترې ویده شو، په داسې حال کې چې سخت باد را الوتی و!

گرانه لوستونکیه! په دې پند پوه شوې؟

کله چې دې د ناکامۍ طوفانونو ته ځان نه وي تیار کړی، د بریا هیله مه کوه!



## ۶۶ د هنري فورډ قانون

په نړۍ کې د «Ford» نومې لومړني موټر مخترع «هنري فورډ» يوه له حکمته ډکه جمله ويلې:

«که ته په دې باور وې چې يو کار کولای شې يا په دې باور وې چې يو کار نه شې کولای، نو په دواړو حالاتو کې پر حقه يې!»

ګرانه لوستونکيه! دا يوازې حکمت نه دی، بلکې دا يو خطرناک قانون هم دی! ایا ورته متوجه شوې؟! يو ځل بيا يې ولوله او ښه فکر پرې وکړه! فکر کوم حتماً به ګنګس شې، خو دا قانون سل په سلو کې سهي دی!

## ۶۷ د نقاشۍ برش دې درسره وساته!

نړۍ وال پېژندل شوي نقاش «فان ګوخ» تر (۸۰۰) ډېرې لوحې نقاشي کړې وې، خو د خپل ژوند پر مهال يې ترې يوه هم ونه پلورله، دا سره له دې چې پرله پسې تلوسه يې درلوده چې خپلو لوحو ته بازار ومومي او د مخورو خلکو توجه ورته را واړوي. هغه تر ځان وروسته داسې نقاشي شوې لوحې په ميراث پرېښودې چې د سختې خوارۍ او مبارزې ښې بېلګې له ورايه ښکارېدې. له همدې امله وه چې د هغه تر مړينې ډېر مهال وروسته د (۱۹۹۰) ميلادي کال د مۍ مياشتې په (۱۵) مه د هغه يوه نقاشي شوې لوحه له دريو دقيقو په کمه موده کې په (۸۲) ميليونو ډالرو وپلورل شوه او دا د نړۍ په تاريخ کې د يوې لوحې په مقابل کې تر ټولو لوړ قيمت و.

که «فان ګوخ» د يوې ثانيې لپاره هم دا فکر کړی وای چې ناکامۍ يې په داخل کې د موجود فن پر ښکلا سيوری غوړولی، نو خپلو نوښتونو ته به يې دوام نه وای ورکړی، سره له دې چې ملا ماتوونکې بې وزلي او د خلکو له لوري يې د فني غوره والي نه ستاينه هغه څه وو چې بايد دې کار ته يې مجبور کړی وای، خو هغه پر دې کلک باور درلود که څه

هم چې ارزښتمنې ملغلرې تر شګو لاندې وي، خپل ارزښت له لاسه نه ورکوي.

له همدې امله وه چې خپلو نقاشیو ته یې دوام ورکړ، ځکه هغه پوره ډاډه و چې سیلۍ به یې یوه ورځ نړۍ ته د هغو هنري ملغلرو کیسې ورسوي چې د ده فن ته د خلکو د ناپوهۍ او سپک کتلو شګو لاندې کړې وې. هغه د خلکو له لوري پر ده شوي د ناکامۍ حکم ته تسلیم نه شو، را ونه پرځېد او یو قدم یې هم شاته راستون نه شو.

## پټه خبره...

د خپل ژوند له اسمانه د ناکامۍ د مرغیو د لویې ډلې د هجرت ننداره مه کوه، په داسې حال کې چې هر سهار ورته د خپلې ناکامۍ دانه اچوې او په خپل باغ کې د بریا د ګلانو د غوټیو د پرانیستل کېدو هیله مه کوه، په داسې حال کې چې هر ماښام پرې خاورې اړوې!

هغسې واوسه چې په خپلو ژورو کې یې غوره بولې، په خپلو ژورو کې تر ټولو ښې هیلې رسم کړه او پر ځمکه د ثابتو حقایقو په څېر خوند ترې واخله او کله چې دې خلک نه ستایي، پام چې د نقاشۍ برس دې مات نه کړې!

## ۶۸ نظم ستر راز دی!

د ساعت جوړولو سویسي شرکتونو تر ډېره وخته د ساعت جوړولو د صنعت مشري په لاس کې درلوده، تر ټولو ښه ساعتونه به یې جوړول. د شلمې پېړۍ په شلوېښتمو کلونو کې سویسي شرکتونو د نړۍ اتیا فیصده ساعتونه جوړول. د همدې پېړۍ په شپېتمو کلونو کې یو سویسي مخترع د دې هېواد د ساعت جوړولو یو تر ټولو ستر شرکت ته د نوي ډول ساعتونو جوړولو طرحه وړاندې کړه، خو ټولو سویسي شرکتونو رد کړه.

دا چې نوموړي د خپلې طرحې پر ځانګړنو باور درلود، هغه یې له

«سایکو» نومې جاپاني شرکت سره شریکه کړه. دا نوې طرحه د ډیجیټل ساعتونو جوړول وو او نن ورځ د ټولې نړۍ د ساعتونو څه باندې اتیا فیصده ډیجیټل ساعتونه دي. په دې توګه د نوموړي طرحه بریالۍ شوه، ځکه هېڅکله ترې تېر نه شو.

په خپلو وړتیاوو باور درلودل، ترسره کولو ته یې ژمن اوسېدل او په منظم ډول ورته بیا کتنه کول هغه څه دي چې بریالی انسان درخخه جوړوي. ډېر کم خلک خپلو هغو هیلو ته د رسېدو لپاره دوام ورکوي چې باور پرې لري، نو ته هم نظم د تل لپاره خپل شعار وګرځوه.

## ۶۹ لږ ورته ځیر شه!

راتلونکې د هغو خلکو په واک کې دی چې کولای شي فرصتونه مخکې تر دې چې نورو خلکو ته ښکاره شي؛ ووینې او غنیمت کړي.
(تېډ لیفیټ)

## ۷۰ ذره بین مه خوځوه!

په یوه لمرینه ورځ کې د یوه لوی ذره بین په مرسته نه شې کولای چې د یوې کاغذي پاڼې یوه وړه برخه وسوځوې، ځکه پر یوې نقطې له متمرکز کولو پرته یې هاخوا دېخوا خوځوې، خو همدا چې د پاڼې پر یوې مشخصې نقطې یې متمرکز کړې، ټوله پاڼه سوځوي.
دې ته د تمرکز ځواک وایي!
ذهني تمرکز دې برابر کړه او خپل اهداف ولیکه، خو دومره لوی اهداف هم نه چې له وسې دې پورته وي، ځکه بیا دې ناتوانه کوي. تر خپلو وړتیاوو واړه اهداف هم مه لیکه، ځکه بیا دې هیلې مري. د خپلو اهدافو تر لیکلو وروسته هغه په غور ولوله، تمرکز پرې وکړه، هره ورځ یې بیا بیا ګوره، ژور فکر پکې وکړه او تر دې وروسته په صبر او باور سره د هغو په ترلاسه کولو پسې شه.

د هغه لاروي په څېر مه کېږه چې خپله لاره تري ورکه وي، ترڅو په لالهاندۍ کې ډوب نه شې، فکر دې خور وور نه شي او په وچ ډاګ بانږ نه شې، ځکه په دې توګه خپل ټاکلي هدف ته نه شې رسېدای، بلکې بې ګټې به هر لور ته منډې را منډې وهې!

## ۷۱ تېر هېر کړه!

«اوپرا وينفري» له داسې مور و پلاره زېږېدلې وه چې د واده اړيکې يې نه سره لرلې، له همدې امله مجبوره وه چې له خپلې مورنۍ نيا سره واوسېږي. نيا يې د ميسيسيپي ايالت په يوه بې وزله سيمه کې جامې مينځونکې (دوبۍ) وه. اوپرا په همدې بې وزله کورنۍ کې را لويه شوه، خو هغې اراده درلوده چې يوه مشهوره او شتمنه ښځه شي او د خپلې نيا په څېر تنګ ژوند ونه کړي. پر اوپرا په نهه کلنۍ کې د خپل تره د زوی له لوري جنسي تېری وشو، پر دې سربېره پرې د خپل يوه بل نږدې خپلوان له لوري هم څو څو ځلې جنسي تېری شوی و.

دا مرحله د اوپرا د ژوند ځوروونکی پيل و، خو لکه هغه چې په خپله وايي؛ دې پېښو هغې ته دا امکان برابر کړ چې د خپل مشهور تلويزيوني پروګرام (اوپرا) له لارې خپل پخواني ترخه يادونه تر خلکو ورسوي.

هغه د رسنيو نړۍ ته راغله او د يوې مشهورې ښځې په توګه وپېژندل شوه. په (۱۹۸۶) ميلادي کال اوپرا نومې تلويزيوني پروګرام په ټول هېواد کې په پرله پسې توګه خپرېده چې بيا وروسته د نړۍ په کچه د خبرو اترو د پروګرامونو په لړ کې تر ټولو ډېر ليدونکی پروګرام وبلل شو. په دې توګه د يوې سروې له مخې «اوپرا وينفري» په امريکا کې د تر ټولو شتمنو ښځو په فهرست کې اووم ځای خپل کړ.

- د اوپرا وينفري په کيسه کې مې ډېر غور وکړ، له دې امله نه چې ګواکې مشهوره خبرياله ده، بلکې له دې امله چې له ټولو هغو ستونزو سره سره چې دا ورسره مخ شوې وه، د دردونو له ټولو هغو خنډونو سره سره چې ترې تېره شوه او د خپل ابتدايي ژوند ترېخ

واقعیت ته چې نهیلي او ناکامي پکې وه؛ له تسلیمېدو پرته یې وکولای شول چې نه هېرېدونکې مشهوره خبریاله شي!

## ۷۲ د کلونو پروا مه کوه!

- د معاصر مصر مؤسس، محمد علي د خپل عمر په پنځه څلوېښت کلنۍ کې د عربي ژبې زده کړه پیل کړه.
- نابغه شاعر، الذبیاني هغه مهال خپل لومړنی شعر ووایه چې عمر یې تر شپېتو کلونو اووښتی و.
- الماني فېلسوف، شوپنهاور د خپل عمر په اویا کلنۍ کې د شهرت لوړې څوکې ته ورسېد.
- مشهور فېلسوف، افلاطون چې په اسیوط کې وزېږېد او په روم کې یې ژوند کاوه؛ په اته څلوېښت کلنۍ کې لیکوالۍ ته مخه کړه او دا وروسته تر دې چې زده کړې یې پای ته ورسولې او خپله فلسفه یې تکمیل کړه. د هغه فلسفه وروسته د (نوي افلاطونیت) په نوم ونومول شوه.

## ۷۳ کړکۍ خلاصه کړه!

داسې وبوله چې ته د ناکامۍ او راپرځېدو په شېبو کې په یوه کولپ شوې کوټه کې ناست یې، بیا داسې انګېرې چې ګواکې له هرې خوا د نورې شپې تیارو را چاپېره کړی یې، نو که دغه ډول یوه خیال ته دې غاړه کېښوده، دربانديې برلاسي کېږي، خو که پورته شې، د کړکۍ پر لور ورشې او خلاصه یې کړې، نو وبه وینې چې رڼا ورځ ده!

مهمه دا ده چې پر خپلو پښو ودرېږې او د تړل شوې کړکۍ پر لور ورشې. مه تسلیمېږه، مه ذلیله کېږه او دا وهم پرېږده چې ګواکې تیارو را چاپېره کړی یې او کړکۍ پورې شوې ده. څینې لوی خندونه له لرې نه د پنډو ورېځو او لوړو دېوالونو په څېر ښکاري، خو کېدای شي په یوه

مجهول شي سره پکې سوري وکړای شې، بلکې کېدای شي زمانه درته ثابته کړي چې دا لوی ښکارېدونکي شیان د ایرو غونډۍ یا کاغذي کلاګانې وې!

په نړۍ کې دایمي بریا یا دایمي ناکامي نه موندل کېږي، موږ هر یو کولای شو چې د خپل غرور، بې احترامۍ، سستوالي او ځان غوښتنې له لارې خپله بریا په ماتې بدله کړو او هر یو کولای شو چې د باور پرله پسې هڅې، مبارزې او صبر له لارې خپله ماتې په بریا بدله کړو. خیني مو لاسونه پورته کوي چې ځان تسلیم کړي او خیني مو بیا د دې لپاره لاسونه پورته کوي چې مقاومت وکړي. خیني مو داسې دي چې په لومړنۍ ضربې سره بې هوښه کېږي او له خینو مو بیا لومړنۍ ضربه قهرمان جوړوي.

که زموږ هر یو د هر هغه سړي په کیسه پوهېدای چې د خپل ژوند لاره یې ټاکلې او بریالی شوی، نو د هغو سختیو، خنډونو او بحرانونو پر مهال به حیران او لالهانده نه شي چې ورسره مخ کېږي. خینې تمځایونه دي چې د بریا ګاډي باید هلته توقف وکړي، خو د ګاډي ډېری سورلۍ وروستي تمځای ته د ګاډي تر رسېدو مخکې د توقف زحمت نه شي زغملای، له همدې امله په لومړي یا دویم تمځای کې له ګاډي کوزېږي. له دې ډلې یوازې هغه سورلۍ خپل هدف ته رسېږي چې د ګاډي تر وروستي تمځایه د لارې ټول تکلیفونه زغمي او صبر پرې کوي. تر ټولو عجیبه لا دا ده، کوم تکلیف چې ته یې نن زغمې، سبا ته دې د یوه خوښوونکي یادښت په توګه د بریا کتابچې ته ور زیاتېږي. هر ناکامي چې په پیل کې پرې برلاسې شې، په پای کې په بریا بدلېږي او هر ګوزار چې د لارې په سر کې دې پر ملا لګېږي، د لارې پای ته دې خو قدمه نور ور نږدې کوي.

نن له خپلې ناکامۍ شکایت مه کوه او مه ورته تسلیمېږه. ځکه دا د بریا د هغې شپېلۍ په خبر ده چې ستا د راتلونکې د دروازې مخې ته وهل کېږي. مهمه دا ده چې پر ځان باور ولرې، کار وکړې، زیار وباسې، صبر خپل کړې او پرله پسې هڅه وکړې.

## ۷۴ هېڅ عذر نه لري!

هغوی چې د عذرونو په جوړولو کې مهارت لري، هېڅ ملامت نه دي،
ځکه دوی له دې پرته کوم بل کار کولای نه شي!
(بنجامین فرانکلین)

## ۷۵ همېشه رېښتينی اوسه!

«ايس آی ميکميلن» په خپل کتاب (None of these diseases) کې د
يوې داسې پېغلې کيسه کوي چې غوښتل يې پوهنتون ته داخله شي.
کله چې يې د نوم ليکنې پاڼه ډکوله، د دې پوښتنې په لوستو يې هيلې
په اوبو لاهو شوې: «ايا دا دې خوښېږي چې رهبري کوونکی شخصيت
ولرې؟»
دا چې دا پېغله رېښتينې او د ژوندي ضمير خاونده وه، نو د ځواب په
ځای کې يې وليکل: «نه!» او بيا يې پاڼه ادارې ته وسپارله، په داسې
حال کې چې د خورا بدې پايلې راوتو په تمه وه. خو هغه مهال سخته
هکه حيرانه شوه کله چې يې د پوهنتون له خوا په دې ټکو ليکل شوی
ځواب ترلاسه کړ: «ګرانې لورې! زموږ د نوم ليکنې د پاڼو ارزونې وښوده
چې سږ کال به زموږ له پوهنتون سره (۱۴۲۵) نوي رهبران يو ځای شي.
نه مو هم پوهنتون ته منلې يې او دا يوازې له دې امله چې زموږ په باور
دا مهمه ده چې له دوی سره لږ تر لږه يو منونکی کس هم موجود وي!»

- مخکې تر دې چې له خلکو سره رېښتينی واوسې، له خپل ځان سره رېښتينی واوسه او پر دې پوه شه، هره هغه بريا چې اساس يې درواغ وي، پايله يې خامخا ناکامي ده، که څه هم چې په دې منځ کې ډېره زمانه تېره شي.



## ۷۶ د مبارزې کښتۍ!

«ابراهام لینکولن، په یوه غریبه کورنۍ کې وزیږید، همېشه به یې د خپل ژوند د شرایطو د ښه والي فکر کاوه. لاندې کیسه یې د ځوانۍ پر مهال پېښه شوې وه.

یوه ورځ خبر شو چې فلانکی نومیالی قاضي د سیند پر هغه بله غاړه اوسي او د قانون د کتابونو یوه لویه برخه ورسره ده، نو هغه ته د ورتلو تکل یې وکړ، په یوه وړه کښتۍ کې سپور شو ترڅو د سیند هغې بلې غاړې ته پورې وځي. د سیند اوبه منجمدې شوې وې، لینکولن په ډېرې خوارۍ د سیند تر نیمایي پورې مسافه ووهله. دلته وه چې کښتۍ یې د یخ له یوې لویې ټوټې سره د جنګېدو له امله سورۍ شوه، خو زړور لینکولن په دې وېروونکې حالت کې خپله روحیه له لاسه ورنه کړه. خپل سفر ته یې دوام ورکړ تر دې چې له سینده پورې ووت او د قاضي کور ته ورسېد.

قاضي د لینکولن د رارسېدو پر مهال ځینې کورنې کارونه درلودل چې باید ترسره کړې یې وای، خکه نو لینکولن د هغو په ترسره کولو لاس پورې کړ. له خنګله یې لرګي یې ورته راوړل او له کوهي یې اوبه ورنه راوویستې، خو د خپلو دې خدمتونو په بدل کې یې له قاضي نه اجره وانخیسته، بلکې په بدل کې یې ترې د هغه په کتابتون کې د حقوقو د شته کتابونو د لوستو اجازه وغوښته او قاضي ورسره ومنله.

د لینکولن د زړورتیا او کلکې ارادې دا کیسه په امریکا کې له هېواد سره د مینې یو سمبول وبلل شو او همدې کیسې بیا وروسته لینکولن د دې وړ کړ چې د امریکا ولسمشر شي!

- که انسان ریښتینی عزم او پیاوړې اراده ولري، کولای شي چې هر کار ترسره کړي، ان که کښتۍ یې سورۍ او څپاند سیند منجمد شي!

## ۷۷ ابن حزم او استاذ یې!

- وايي امام ابن حزم رحمه الله داسې مهال د علم زده کړې ته ملا وتړله چې شپږ ويشت کلن و. هغه د فقهې د علم زده کولو د لامل په اړه وايي:

«په جومات کې مې د خپل پلار د يوه سپين ږيري ملګري جنازه وليده، نو د مازيګر تر لمانځه مخکې جومات ته ننوتم. ډېر خلک ناست وو، زه هم پرته له دې چې کوم رکعت لمونځ وکړم، همداسې کېناستم. استاذ مې په اشاره وپوهولم چې پاڅم او تحية المسجد (جومات ته د ننه راغلاست) لمونځ وکړم، خو زه يې د اشارې په مقصد پوه نه شوم. دا مهال مې څنګ ته ناستو خينو کسانو راته وويل: دې عمر ته رسېدلی يې او لا هم په دې نه پوهېږې چې تحية المسجد سنت دي؟!

له جومات نه را ووتم. سخت خجالته شوم او په دې سپکاوي مې زړه سخت خپه شو. خپل استاذ ته مې وويل: د فقيه شيخ ابي عبدالله بن دحون ۱ کور پته راکړه، هغه يې کور راوښود، زه هماغه ورځ ورغلم او خپله کيسه مې ورته وکړه. بيا مې ترې وپوښتل چې لومړی کوم کتاب ولولم او په دې اړه مې ترې مشوره وغوښته، نو راته وبې ويل چې لومړی بايد د امام مالک رحمه الله موطأ نومې کتاب ولولم. ما هم له هماغې ورځې د موطأ په لوستو پيل وکړ. د دربيو کلونو لپاره مې همدا او خينې نور کتابونه بيا بيا ولوستل او تر دې وروسته مې په مناظرو پيل وکړ.»

- ستر صحابي عبد الله بن مسعود رضي الله عنه شپون و، پسونه به يې پوول او په کلي کې را لوی شوی و. کله چې يې د رسول الله صلی الله عليه وسلم په لاس د خپلې وچې ګډې د غولانځې مسحه کېدل او ترې د پرېمانه شېدو را روانېدو معجزه وليده، نو ايمان يې راوړ.

وړوکی بدن، سپک وزن او ټیټه ونه یې درلوده، کله چې به پر لاره روان و او تېزه سیلۍ به وه، پر ځمکه به راولوېد. ترځنګ ناست کس به یې داسې ګومان کاوه چې ګواکې دی هم ناست دی، په داسې حال کې چې هغه به ولاړ و. نرۍ پنډۍ یې وې، یوه ورځ یې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته له ونې لرګي راماتول، نو صحابه کرامو یې په نریو پنډیو پورې وخندل، رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوی ته وفرمایل:

«ایا د ابن مسعود پنډیو پورې خاندئ؟! د ده پنډۍ د الله تعالی پر وړاندې د میزان په تله کې د احد تر غره هم درنې دي.»

- انسان ته ښایي چې خپل شکل او بدني جوړښت د خپلې ناکامۍ لامل ونه بولي. ځکه زموږ بدني جوړښت یوازې یو سکیلېټ دی چې که په داخل کې یې جوهر موجود نه وي، کوم ارزښت نه لري. هغه انسان به څه په درد وخوري چې ښکلا پرې تمامه وي. خو عقل او فکر دواړه یې بوچ وي. د بریا هیڅ امکان په لاس کې نه لري او دا سربېره پر دې چې د ناکامۍ په سمندر کې پوره ډوب شوی وي او د خپلې ټولنې یو بې ارزښته غړی بلل کېږي. دغسې انسان ته یکژ دي چې د نورو له تجربو ګټه واخلي او د ابن حزم په څېر د خپل خان په روزنې پیل وکړي.

## ۷۸ د ګاندي څپلی!

وایي یوه ورځ ګاندي چټک چټک روان و ترڅو تېز تلونکي ریل ګاډي ته خان ور ورسوي. همداسې وشول او په ډېرې سختۍ ور ورسېد، خو د پورته کېدو پر مهال ترې یوه څپلۍ له پښو پرېوته. سمدستي یې خپله دویمه څپلۍ هم له پښې وویستله او د لومړنۍ څپلۍ څنګ ته یې ګوزار کړه. ملګرو یې په دې کار هک حیران شول. ترې ویې پوښتل: ولې دې خپله دویمه څپلۍ هم ګوزار کړه؟!

ګاندي وويل: غوښتل مې که کوم فقير مې يوه څپلۍ ومومي چې دا بله هم ورسره وي او ګټه ترې واخلي!

خبره يوازې د څپلۍ ګوزارولو نه ده، بلکې يو حکمت دی چې ګاندي غواړي مونږ ته يې را زده کړي، خو په عملي توګه او هغه دا چې هېڅکله بايد په تويو شويو شيدو پسې ونه ژاړو، ځکه زمونږ ژړا يې بېرته خپل لوښي ته نه شي راستنولای. کله چې ګاندي رېل ته پورته شو او يوه څپلۍ يې ترې ولوېده، نو کولای يې شول چې ښکته شي او په منډه يې را واخلي، خو د دې کار په بدل کې ترې رېل ګاډی تللو. هغه په دې هم ښه پوهېده چې که له رېل ګاډي نه کوز شي، ګرانه ده چې ور ورسېدای شي.

نو ته هم شاته مه ګوره او کله چې په يوه کار کې ناکامه شوې، ډېر افسوس پرې مه کوه، ځکه دا دې د پرمختګ مخه نيسي او له لاسه تللي شيان هېڅکله بېرته په لاس نه شي درکولای، نو همېشه مخې ته ګوره او د تېر مهال ستونزې له ياده وباسه!

د ګاندي د حکمت خلاصه دا شوه چې:

- اوس نو فکر وکړه، ايا هره ورځ په داسې حال کې له خوبه راوېښېږې چې د يوه له لاسه وتلي شي په اړه چې نه دې دی ترلاسه کړی، افسوس کوې؟!
- که ستا ځواب نه! وي، نو مبارک دې شه، ځکه د بريا د دروازې مخې ته ولاړ يې او که ځواب دې هو! وي، نو بله څپلۍ دې هم ګوزار کړه، رېل ګاډي ته پورته شه، خپل سفر ته دوام ورکړه او هېڅکله شاته مه ګوره، ځکه کولای شې په کوم بل ځای کې د څپليو کارخانه ومومې چې ستا انتظار کوي، خو په دې شرط چې تر نن ورځې وروسته شاته ونه ګورې!



## ۷۹ تل د الله تعالی شکر ادا کوه!

یو پخواني حکمت دی، وایي: «هغه نعمتونه وشمېره چې الله تعالی درکړي، بیا یې یو په یو ولیکه، نو نفس به دې تر پخوا لا ډېر نېکمرغه ومومې.»

موږ ډېر مهال دا هېروو چې د الله تعالی شکر ادا کړو، ځکه په برکتونو کې غور نه کوو او هغه نعمتونه نه شمېرو چې له موږ سره دي. موږ ستړیاوې او ستونزې وینو او شکایت ترې کوو، خو هغه څه ته نه ګورو چې لرو یې.

یو عالم وایي: موږ شکایت کوو چې ولې الله تعالی تر ګل لاندې ازغي پیدا کړي، په داسې حال کې چې مناسبه دا وه چې موږ یې له دې امله شکر ادا کړی وای چې د ازغي دپاسه یې ګل پیدا کړی.

یو بل وایي: کله چې مې ځان پښې یېلې ولید، سخت وردرېدم، خو کله چې مې یو بې پښو کس ولید، د الله تعالی شکر مې ادا کړ.

## ۸۰ له فرصتونو ګټه واخله!

- کېدای شي ځینې مهال فرصتونه ستا دروازه در وټکوي، نو په پرانیستلو کې یې ځنډ مه کوه، داسې نه چې درنه ولاړ شي او د هغه چا په لټه کې شي چې ښه مېلمستیا یې کوي!
- له فرصتونو نه د ښې ګټې اخیستنې په اړه هوښیار اوسه، ځکه فرصتونو لکه تېز طوفانونه داسې دي، که تیاری دې ورته نه درلود، هر څه دې له منځه وړي او په خپله مخه ځي او له پښېمانۍ او افسوس سره دې لاس و ګرېوان کوي، نو همېشه ویښ اوسه، ځکه څوک څه پوهېږي چې طوفان څه وخت راځي؟



## ۸۱ د تیډي ستوډارډ ښوونکې

کله چې ښوونکې په لومړۍ درسي ورځ د پنځم ټولګي مخ ته ودرېده، خپلو زده کوونکو ته یې د هغوی د خوشحالولو په خاطر یوه ښکلې جمله وویله، بیا ټولو ته ځیر شوه او ویې ویل: زه له تاسې ټولو سره مینه لرم. خو دا مهال یې یو زده کوونکی په خپل زړه کې له دې ډلې مستثنی باله، دا زده کوونکی به د ټولګي په لومړي کتار کې کېناسته او تیډي ستوډارډ نومېده.

ښوونکې «تامسن» د تېر کال پر مهال دا ماشوم پوره څارلی و او متوجه شوې وه چې له نورو ماشومانو سره لوبې نه کوي. تل به یې جامې خیرنې وې، لمبا ته به یې اړتیا درلوده او له دې سربېره یو غیر منظم او تمبل زده کوونکی معلومېده. په پای کې خبره دې ته ورسېده چې ښوونکې به د هغه د پاڼو د کتلو پر مهال له دې خوند اخیست چې په سور قلم او روښانه ټکو د چلیپا (x) علامې پرې وکړي او بیا به یې د پاڼو دپاسه ورته ولیکل: ناکام!

ستوډارډ یوه ورځ له خپلې ښوونکې وغوښتل چې د هر زده کوونکي د تېرو کلونو درسي اسناد وګوري. ښوونکې د هغه درسي اسناد تر ټولو لاندې کېښودل او کله چې یې وار راغی، له حیرانوونکي حالت سره مخ شوه. د تیډي ښوونکي په لومړي ټولګي کې د هغه په اړه لیکلي وو: تیډي یو ځیرک زده کوونکی دی، له لوبو خوند اخلي، خپل کار په پوره او منظم ډول ترسره کوي او خورا نرم خویه دی!

د دویم ټولګي ښوونکي یې په اړه لیکلي وو: تیډي هوښیار زده کوونکی دی، ټولګیوال یې ورسره مینه لري، خو دا چې مور یې په یوه لاعلاجه ناروغۍ اخته شوې، نو پرېشانه او روحاً خپه وي، ځکه کورني ژوند ستړې ستومانه کړی او له خورا ډېرو ستونزو سره لاس و ګرېوان دی!

د درېیم ټولګي ښوونکي یې په اړه لیکلي وو: د مور مړینه یې ورته خورا سخته تمامه شوه، له دې حالته د راوتو لپاره یې ډېره هڅه وکړه، خو

بلا به یې ورته کومه ځانګړې پاملرنه نه کوله، که ...
پرېکړې ونه کړي، نو ډېر ژر ده چې کورنی ژوند یې پر روحیې تاثیر وکړي!

د څلورم ټولګي ښوونکې یې په اړه لیکلي وو: ټېډي په ځان کې ...
وي، زده کړو ته ډېره پاملرنه نه کوي، ملګري یې هم کم دي او حسن ...
مهال د درس پر مهال په ټولګي کې ویده کېږي!

دلته وه چې ښوونکې «ټامسن»، د ټېډي ستونزه درک کړه، له هغه ...
د خپل کړي چلند له امله سخته خجالته شوه او د هغه په اړه یې حس ...
دریغ بدل کړ.

وخت تېرېده، زده کوونکو د نوي عیسوي کال په ویاړ خپلې ښوونکې ته په ښکلو پاکټونو کې بندې کړې ډالۍ راوړلې، خو ټېډي په دې ورځ خپله ډالۍ په یوه بېکاره پاکټ کې تاوه کړې وه. ښوونکې چې کله د ټېډي د ډالۍ پاکټ پرانیست، سخته وردرېده. دا مهال زده کوونکو په کړس کړس وخندل، ځکه د ټېډي ډالۍ د جعلي الماسو له کاڼو جوړ شوی یو امېل او د عطرو یو بوتل و چې تر څلورمې برخې لږ عطر په کې وو. د زده کوونکو خندا هغه مهال په حیرانتیا بدله شوه کله چې ښوونکې د ټېډي د امېل ښکلا ته خورا ډېره خوښي وښوده، بیا یې په غاړه کړ او د هغه د عطرو څو څاڅکي یې هم په خپل مروند پورې ومښل. ټېډي په دې ورځ تر هغې کور ته ستون نه شو ترڅو چې له ښوونکې سره مخ شوه او ورته ویې ویل: نن دې د بدن بوی زما د مور د بدن د بوی په څېر دی!

کله چې زده کوونکي له ښوونځي نه ووتل، ښوونکې ټامسن د ټېډي دردوونکې جعلي ته پوره یو ساعت په زوره زوره وژړل. ښوونکې تر هغې ورځې وروسته د لیک، لوست او حساب د مضامینو په تدریس اکتفاء ونه کړه، بلکې زده کوونکو ته به یې ټول مضامین ور ښودل، یعنې د ټولګي پوازېنۍ ښوونکې شوه. هغې به تر ټولو زده کوونکو ټېډي ته ډېره پاملرنه کوله، په دې توګه د ټېډي عقل له نوي سره وده او فعالیت

پیل کړ او کله چې به یې ترې ښوونکې پوښتنه کوله، نو خورا ژر به یې ځواب ورکاوه. د درسي کال په پای کې ټیډي په خپل ټولګي کې تر ټولو غوره او ځیرک زده کوونکی وبلل شو!

تر یوه کال تېرېدو وروسته ښوونکې ټامسن د خپلې دروازې مخې ته یوه پاڼه موندله چې ټیډي ور استولې وه او پرې لیکلي یې وو: په خپل ژوند کې مې تر ټا غوره ښوونکې نه ده لیدلې!

ټیډي د ښوونځي منځنۍ دوره پیل کړه او کله چې شپږ کاله تېر شول، ښوونکې ټامسن ته یې ولیکل: منځنۍ دوره مې پای ته ورسوله او په ټولګي کې درېیم نمره شوم، خو ته لا هم زما په نظر تر ټولو غوره ښوونکې یې!

بیا چې یې څلور نور درسي کلونه تېر شول، هغې ته یې په یوه بل لیک کې ولیکل: ژوند مې سخت شوی، په یوه داسې پوهنځي کې اوسم چې هېڅ مې نه دی خوښ، خو په نږدې راتلونکې کې ترې په لومړۍ درجه فارغېږم. په پای کې بیا هم دا یادونه کوم چې ته تر اوسه هم راته تر ټولو خوښه او غوره ښوونکې یې!

بیا څلور کلونه هم تېر شول او خپلې ښوونکې ته په لیک کې څرګنده کړه: د لیسانس سند مې واخیست او غواړم لا نورې زده کړې وکړم. دا خبره مې بیا تکراروم چې په خپل ژوند کې مې ستا په څېر غوره او ښه ښوونکې نه ده لیدلې!

ټیډي څو کاله وروسته خپلې ښوونکې ته بیا یو لیک واستاوه، خو دا ځل یې پرې نوم خورا اوږد لیکل شوی و: د دوکتور تیوډور ایف ستوډارډ له لوري ښوونکې ټامسن ته!

د ټیډي کیسه په همدې ځای پای ته ونه رسېده، بلکې خپلې ښوونکې ته یې په یوه بل لیک کې ولیکل: له یوې پېغلې سره مخ شوی یم، غواړم واده ورسره وکړم، له تاسې نه هیله کوم چې زما د مور په توګه زما د واده په مراسمو کې ګډون وکړئ.

ښوونکې ټامسن ومنله او د ټیډي د واده مراسمو ته یې ځان تیاره کړه.

دا مهال یې له جعلي الماسو جوړ همغه امېل په غاړه و چې ټیډي ورته کلونه وړاندې په پنځم ټولګي کې ډالۍ کړی و او تر ټولو حیرانوونکې لا دا چې پر خپلو جامو یې همغه عطر پوړې کړې وو چې ټیډي ته بد یې خپله مور ور په یادوله. کله چې ښوونکې غونډې ته ورغله، دوکتور سټوډارډ یې په مینه هرکلی وکړ او بیا یې په غوږ کې ورته وویل: پر ما د باور کولو له امله مو مننه وی یم، مننه چې زه دې د دې وړ کړم چې خان راته مهم ښکاره شو او بیا هم مننه چې ستا په وجه په دې وپوهېدم چې بریالی او خانګړی کېدای شم!

ښوونکې ټامسن په داسې حال کې چې له سترګو یې اوښکې روانې وې، هغه ته په خواب کې وویل: ته خطا شوې، بلکې همدا ته وې چې را ودې ښودل څنګه یوه بریالۍ او غوره ښوونکې کېدای شم. زه له تا سره تر مخ کېدو وروسته په دې وپوهېدم چې څنګه ښه تدریس وکړم! ګرانه لوستونکیه! اوس خو به دې پېژندلی وي چې د چا کیسه مې درته وکړه؟

هو، دا د همغه مشهور ډاکټر ټیډي سټوډارډ کیسه ده چې د امریکې په آیووا ایالت په مرکزي روغتون کې د «سټوډارډ سنټر» په نوم د سرطان د درملنې خانګه لري او دا د امریکا په سطحه د سرطان د درملنې تر ټولو غوره مرکز بلل کېږي!

**پوښتنه:**

پوهېږې، زموږ په ښوونځیو کې به زموږ څومره داسې نابغه زده کوونکي لا هم یوازې له دې امله ناپېژندل شوي پاتې وي چې د بې ارزښته والي حکم پرې شوی؟!

ډېر زیات!



## ۸۲ کم عقلتوب او سوری!

د اسحاق نیوټن په اړه دا خبره مشهوره ده چې خورا حاضر خوابی و. هغه یو داسې عالم و چې په خپل تر و تازه طبیعت او ژورو خبرو به يې خلک حیرانول. یو ځل یوه سړي د هغه په کورتی کې شته سوري ته په اشارې سره وویل: ښاغلی نیوټن! ستاسې بې وزلي له دې سوري نه خورا ښه څرگندیږي!
نیوټن نوموړی په خپل دې خواب سره غلی کړ: نه ښاغلیه! داسې نه ده، بلکې ستا کمعقلتوب دې ته ورننوځي (او ستا دا خبره ستا کمعقلتوب ښکاره کوي.)

- فکر دې دی چې بریالی کس څنگه منفي پیغامونه داسې دریځونو ته اړوي چې خوښي او خندا راجلبوي؟! دا له دې امله کله چې پرې کم عقل رېشخند وهي، منفي پیغامونه يې پر روحیې، پرمختگ او مبارزې اغېز نه کوي.

## ۸۳ د پیټر ډراکر تجربه

د اداري چارو پېژندل شوی عالم، پیټر ډراکر وايي:
«د وخت تنظیمول زده کړه، ځکه وخت زموږ تر ټولو قیمتي شتمني ده، که په ښه شکل مو اداره نه کړ، هېڅ شی نه شو اداره کولای او خپل فکر د نوښت پر شېبې متمرکز کړه، ځکه همدا هغه څه دي چې زموږ پر اهدافو لوی اغېز غورځوي.»

## ۸۴ وقفه!

تاوان مو وکړ، ځکه له ځان سره مو ویلي وو چې تاوان کوو!
(لیو تولستوی)

## ۸۵ لوی ارمان!

د امریکا په یوه ښوونځي کې ښوونکي له زده کوونکو وپوښتل: کله چې لویان شئ، غواړئ څه شی درنه جوړ شي؟

ټولو زده کوونکو ښوونکي ته خپل خپل ارمان ووایه، چا ویل غواړم انجینر شم، چا ویل ډاکټر، چا ویل عالم او چا ویل غواړم دا او هغه شم.

خو په دې ډله کې یوه زده کوونکي وویل: غواړم د امریکې ولسمشر شم!

په دې خبره ښوونکی او زده کوونکي له خندا شنه شول. خبره د زده کوونکي خپلوانو او ګاونډیانو ته ورسېده، هغوی هم په زوره زوره وخندل او ترې ویې غوښتل چې له سره سم فکر وکړي!

پوهېږې، ایا د دې ماشوم ارمان پوره شو؟!

هو، دا زده کوونکی بېل کلینټن، د امریکا پخوانی ولسمشر و!

- کله چې خبره ستا د ارمانونو وي، نو ځان کوڼ کړه او د خلکو له رېشخنده ډکو خنداګانو ته پام مه کوه ترڅو په پای کې همدا ته خندېدونکی واوسې!

## ۸۶ خپل ارزښت وپېژنه!

ځان په هغو منفي انګېرنو کې مه رانغاړه چې ځان په ډېرو وهل درنه اسانوي او ورسره ستا او ستا د هیلو او ژوند ته په مثبت نظر کتلو ترمنځ خنډ کېږي. تل کوښښ وکړه چې د هغو ښو کارونو په اړه خپله فکري ورتیا لا زیاته کړې چې پیل کړي دې دي، که څه هم چې واړه وي، ځکه دا ډول واړه کارونه دې لا نور پرمختګ او نوښت ته هڅوي. رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

﴿لَا تَحْقِرَنَّ مِنَ الْمَعْرُوفِ شَيْئًا، وَلَوْ أَنْ تَلْقَى أَخَاكَ بِوَجْهٍ طَلْقٍ﴾

«هېڅ نېکي وړه مه بوله، ان که له خپل مسلمان ورور سره په پراخ تندي مخامخ کېدل وي.»

له همدې امله د هغه هر وړوکي کار چې ترسره کوي يې؛ سپک ګڼل دي په لا شعوري توګه د خپل ځان سپک ګڼلو او پر ځان باور نه درلودو ته رابولي. دا کار دې په پای کې له کاره لاس اخيستو ته هڅوي او ورسره دې د ناکامۍ کندې ته ورټېل وهي، که څه هم چې ته به د ناکامېدو اراده نه لرې!

کوښښ وکړه د هرې ورځې په پای کې دا فکر وکړې چې نن دې کوم نوښت کړی؟ يو قلم او کاغذ را واخله او خپل نوښتونه وليکه، خامخا به هغو کارونو ته حيران شې چې ترسره کړي دې دي، که څه هم واړه وي. وبه وينې چې ته د خپلې کورنۍ او ادارې لپاره څومره ارزښت لرې، په دې سره د نن ورځې د هغو کارونو د ترسره کولو له امله د نېکمرغۍ او مثبت انګېرنې احساس کوې چې ترسره کړي دې دي لکه د کور د اړتيا وړ سامان اخيستل، د موټر خرابۍ اصلاح کول، ماشومانو ته د لوبو شيان اخيستل، مور يا پلار ته د هغوی درمل ورکول، له خپلو ماشومانو يا وړو ورونو سره په جومات کې لمونځ کول، د يوه ناروغ پوښتنه کول او زړه ته يې خوښي ننوېستل، په باغ کې د ونو اضافي څانګې پرېکول، يو ښه کتاب لوستل، يوه بې وزلي ته خيرات ورکول، له کورنۍ سره يوه پارک ته په چکر تلل، د يوه نوښت را منځ ته کولو لپاره فکر کول، د سړک پر سر له يوه سپين ږيري سره مرسته کول او داسې نور ډېر کارونه. په دې توګه به دا احساس کړې چې ته په خپل ژوند کې څومره مثبت انګېرونکی انسان يې او دا ډول احساس دې لا نورو برياوو او کار ته هڅوي.

## ۸۷ د ارمانونو ماڼۍ!

موسی العماري وايي: له وړوکتوب نه مې د يوې لويې ماڼۍ د جوړولو ارمان درلود، پر يوه پاڼه به مې خپل خيالونه په څرګندو خطونو رسمول، د خپلې خيالي ماڼۍ نقشه به مې جوړوله تر دې چې په ساعتونو به له

ځانه ورک وم او تر هغې به نه په خود کېدم ترڅو چې به ښوونکي زما د ډېرې سرګردانۍ له امله راباندې غوسه شو، چغې به يې کړې او ويه يې رټلم، ان ځينې مهال به مې د خپلې بې پروايي له امله يوه نيمه لښتند هم وخوړه! تر دې وروسته د ښوونکي له لوري له خپل سپکاوي سره عادت شوم تر دې چې يو ځل يې له ټولګي وويستم، ځکه له ما سره يوه پاڼه وليده چې يوه لويه ماڼۍ پکې رسم شوې وه. فکر کوم دا لوی ارمانونه په ټولنه کې د دې کوچني ماشوم د هغې رټنې او بې وزلۍ له امله وو چې ما او زما کورنۍ پکې ژوند کاوه او همدارنګه يو لامل يې دا هم و چې ما د بې وزلۍ او تنګلاسۍ حالت رد کړ او داسې مې وګڼله چې ګواکې د ختو له کوټې نه يوې لويې ماڼۍ ته تښتم او له دې لارې خپلې وژونکې محرومۍ ته د پای ټکی ږدم.

په کوچنيتوب کې مې له يوې ښېغلې سره مينه پيدا شوه، هغه راته لکه ټوله دنيا داسې وه، د بل هر نوي خوان په خبر مې له هغې سره اړيکې ژورې شوې، خو زما بې وزلي او شته حالت يې ونه شو زغملی، بلکې دې اغلې هم د بلې هرې ښېغلې په څېر د ماڼۍ، سرو زرو او ډېر مال ارمان کاوه. زما د همدې بې وزلۍ له امله يې زه پرېښودم او د خپلو خوبونو له هغه شهزاده سره ولاړه چې الله تعالی ډېر سره او سپين او مال ورکړی و. دې کار زما په داخل کې يو اور بل کړ، زړه يې راته ټپي کړ، دنيا راباندې تنګه شوه او غم او ستومانۍ له هر لوري را لاندې کړم. دا مهال مې له ځان سره وانګېرله چې زه بايد د پاچاهانو او شاهانو تر ماڼيو ښکلې ماڼۍ ولرم. خپله دا مفکوره مې خپلې مهربانې کورنۍ او ملګرو ته وويله، هغوی دا يو لېونتوب وباله، خو ما هېڅکله ستونزو او خنډونو ته سر ټيټ نه کړ، بلکې ورو ورو مې د خپلې ارماني ماڼۍ په جوړولو لاس پورې کړ او يوه يوه خښته مې ايښوده. بيا مې د هېڅ له مرستې پرته له خورا په زړه پورې تيرو او نقاشۍ نه کار واخيست تر دې چې دې هڅو مې پنځلس کاله وخت ونيو او په دې توګه زما د ژوند نوی باب پرانيستل شو.

هو، د موسی مانۍ نن سبا خورا ډېر مهم آثار، مجسمې او نادره فرهنګي پانګه، د مومیایي مجسمو ننداړتون او د قدیمه اثارو یو کلکسیون لري.
دې مانۍ ته چې د بېروت په الشوف نومې کلي کې ده، هر کال په ملیونونو ګرځندویان سیل ته راځي. د مانۍ څښتن یو کتاب هم لیکلی چې نوم یې دی (موسی... د ژوند ارمان مې) او په هغې کې یې په پوره تفصیل سره د خپل ژوند کیسه لیکلې.
د موسی العماري کیسه د ناشنا هدف ترلاسه کولو یو ریښتینی مثال دی، خو هغه مهال چې پر خپل هدف باوري واوسو او په خیال کې یې تصویر جوړ کړو او هره شېبه یې په یاد ولرو.
ګرانه لوستونکیه! پوهېږې سره له دې چې موسی العماري بوډا شوی، خو بیا هم د خپلې مانۍ د دروازې مخې ته د ګرځندویانو ښه راغلاست ته راوځي؟!
هو، دا د هدف کمال دی!



## ۸۸ مېږی ماتې نه مني!

ایا کومه ورځ دې د مېږي په اړه فکر کړی چې یو طرف ته روان وي او تر خپل کوچني بدن څو چنده غټ بار یې پورته کړی وي؟! که دې کولای شول، په خپلې ګوتې یا د خرما په زړنې سره یې ودروه، یا دا چې د لارې پر سر یې ورې تېرې کېږده، نو سخت به حیرانه شې کله چې پر بله لاره روانېږي. پورته شي، بېرته را ولوېږي، خو بیا هم خپل کار ته ادامه ورکوي. د نوې لارې د موندلو په موخه بیا بیا خپلو هڅو ته دوام ورکوي، خو هېڅکله نه درېږي.
هو، مېږی هېڅکله ودرېدو ته غاړه نه ږدي، ځکه د هغه په قاموس کې درېدل د ماتې او ماتې د مرګ معنا لري. له همدې امله همېشه د بریا په موخه هڅې کوي، که څه هم چې مخې ته یې پراته خنډونه ډېر وي!
نو یوه ورځ د مېږي په اړه فکر وکړه او د ماتې او درېدو پر قانون د اعتراف

نه کولو باور او ټینګار یې وخاره. که کومه ورځ ناکامه شوې، نو په پاړه مېړیان ولټوه او ویې څاره او دا ناشنا قانون ترې زده کړه، بیا سبحان ... وواپه او له سره را پورته شه!

## ۸۹ پر ډېرو پورته شه!

- یو بریالی کس کېدای شي بیا بیا په خپل ژوند کې راوپرځېږي، خو هېڅکله دا نه مني چې ځان ماتې خوړلی وبولي. (جسټن)
- داسې ښکاري چې د بریا مسئله تر ډېره د مقاومت او پر سختیو د ثبات په ورتیا پورې اړه لري او دا وروسته تر دې چې نور خلک تسلیم شي. (ویلیم فیزر)
- د په ټپه درېدنې او را پرځېدنې د حالت د ماتولو لپاره یوازې دا کول بکار دي چې له دې دواړو مخ واړوې او داسې وبولې چې ناشونې ده چې ته دې ناکامه شې. هو، همدا د بریا هغه راز او فورمول دی چې له ناکامۍ نه مو بریا ته انتقالوي. (دوریشا براندې)
- په پوخ عزم سره تقریبا هر ډول نوښت را منځ ته کېدای شي. په همدې کې د لویانو او وړو خلکو ترمنځ ستر توپیر پټ دی. (توماس فولر)
- له هغو خنډونو نه چې مخه دې نیسي، داسې ډبرې جوړې کړه چې پرې پورته شې. (جاک بین)
- هغوی چې له ټینګار نه خوند اخلي، له هغه ځایه خپله بریا پیلوي چې د نورو د ناکامۍ د پای ټکی دی. (ایډوارډ اجلسټن)

## ۹۰ له خپل ربه یې وغواړه!

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

﴿إِذَا تَمَنَّى أَحَدُكُمْ فَلْيَسْتَكْثِرْ؛ فَإِنَّمَا يَسْأَلُ رَبَّهُ عَزَّ وَجَلَّ﴾

«کله چې څه غواړئ، نو ډېر څه وغواړئ، ځکه له خپل ربه یې غواړئ.»

نو که شرایط هر څومره خراب وي او د ناکامۍ وریځې دې پر اسمان را ټولې شي، بیا هم مه تسلیمېږه، بلکې پورته شه، لاس په کار شه، هڅه وکړه او خپل اهداف ترلاسه کړه، خو دا ټول هغه مهال امکان لري چې له خپل رب سره پیاوړې اړیکې ولرې او هېڅکله یې له فضل او کرم نه نهیلی نه شې!

## ۹۱ کښتۍ دې سمدستي وسوځوه!

کله چې قیصر یولیوس د «ریبکون» سیند ته چې د ایټالیې او فرانسوي سیمو ترمنځ پروت دی؛ راغی، د سرحدي جګړې په اړه زړه نازړه شو، ځکه هېڅ فوځي جنرال نه شوای کولای چې د مشرانو جرګې له اجازې پرته دا جګړه وکړي، خو یوه بله پرېکړه چې مخې ته یې وه، دا وه چې ویې ویل: «زما خان له منځه تلل یا زما د هېواد له منځه تلل.»، له همدې امله وه چې نور زړه نازړه توب یې ونه کړ او د خپل لښکر په مشرۍ د سیند غاړې ته ورغی.

د یولیوس پرېکړه د نړۍ تاریخ بدل کړ، هغه سړی چې ویې ویل: «راغلم، ومې لیدل او بریالی شوم.»، هو، هغه ډېر وخت زړه نازړه پاتې نه شو، د خپلې لارې غوره کولو پر مهال به یې له لازم قوت نه خوند اخیست او د ټولو هغو خنډونو د له منځه وړلو لپاره به یې قرباني ورکوله چې د لارې پر سر به یې پراته وو.

کله چې یې ځواکونو پر برطانیې یرغل وکړ، د هغه ځای اوسېدونکو هوډ وکړ چې هېڅکله به تسلیم نه شي. همدلته وه چې د قیصر ذهن ته دا خبره ورغله چې خپلو ځواکونو ته ووایي: یا به بری وي یا مرګ!

د دې لپاره چې پر خپلو ځواکونو د بېرته تګ لاره بنده کړي، ټولې هغه کښتۍ یې وسوځولې چې دوی پکې د برطانیې تر څنډو راغلي وو. په دې توګه د قیصر لښکر یوازې دوه لارې په مخ کې لرلې: بری یا مرګ او همدا جګړه د دې لوی جنګي سالار د شخصیت ځلېدو او بریاوو اساسي ټکی و.

## ۹۲ څنډ!

زړه نازړه کسان له ثبات او تياري نيولو نه بې برخې وي او دا هغه څه دي چې ترې پرته بريا ممکنه نه ده. لوی فرصتونه ډېر کم خلکو خوش نصيبه خلکو ته ترلاسه کېږي، که له فرصتونو په سمدستي توګه کار وانخيستل شي، په منډه تېرېږي.

هغه وکړه چې وخت دې په زړه نازړه توب کې ضايع نه کړې او نه د بې اقدام ترسره کولو پر مهال منفي انګېرونکو ته غوږ شې يا ترې مشوره واخلې، بلکې پر الله تعالی توکل وکړه او که د کښتۍ سوځولو اړتيا شوه، نو ويې سوځوه او پر مخ ولاړ شه!

## ۹۳ منفي انګېرنو ته غاړه مه ږده!

مشهور ويناوال ډينيس ويتلي وايي: «هغه يرغل کوونکی لوبغاړی چې د بريا فکر ورسره وي، د فوټبال توپ خپلولو هڅه کوي او له ځانه سره وايي: که دا لوی هدف (ګول وهل) مې ترلاسه کړ، نو له بنې پايلې سره به مخ شم. يعنې دا چې زموږ د ټيم هر غړی به (۳۰) زره ډالر ترلاسه کړي.»

خو هغه يرغل کوونکی لوبغاړی چې له تاوانه وېرېږي، که څه هم د توپ خپلولو هڅه کوي، خو له ځان سره وايي: «که دا مهم هدف (ګول وهل) مې ترلاسه نه کړ، هېڅکله به له بنې پايلې سره مخ نه شم. يعنې دا چې د ټيم هر غړی به مو (۳۰) زره ډالره تاوان وکړي.»

- هو، دا د بريا او ناکامۍ ترمنځ هغه توپير دی چې ډينيس ويتلي ورته اشاره کوي. د ده له نظره بريالي خلک پر هغه څه ترکيز کوي چې ترلاسه کول يې غواړي، په داسې حال کې چې ناکام خلک پر هغه څه ترکيز کوي چې له پېښېدو يې وېره لري او له بده مرغه دا هغه څه دي چې بالفعل همېشه پېښېږي!

## ۹۴ مه پرېږده چې مخه دې ونيسي!

په (۱۹۸۰) ميلادي کال ټيډ ټيرنر د خبرلو پايلې له پامه وغورځولې او د ټولو هغو مخالفينو خبرې يې ونه منلې چې ده ته يې ويلې وو: هېڅ ممکنه نه ده چې د خبرونو لپاره ځانګړې شوې څلېرويشت ساعته تلويزيوني شبکه دې بريالۍ شي. ټيډ له دې ټولو مخالفتونو سره سره د (CNN) مشهوره تلويزيوني شبکه را منځ ته کړه، هغه چې وروسته يې د رسنيو په خبري برخه کې لومړی ځای ونيوه او هغه چې ډېر نور تلويزيونونه يې په تقليد کولو سره را منځ ته شول.

- که د بريا هيله لرونکې هر شخص په خپلو هڅو کې د خطر معيار له پامه نه وای غورځولای، اوس به مو دا دومره پرله پسې برياوې نه وې ليدلې. دا برياوې موږ ته په ټينګار سره وايي چې ښايي د انسان ارزښت د هغه له دننه او پر الله تعالی د ښه ګومان نه سرچينه واخلي. نو تل پر خپل رب ښه ګومان لره او د هغو خلکو خبرو ته غوږ مه ږده چې ستا د وړتياوو په اندازه نه پوهېږي!

## ۹۵ بريا پر لاره ده، درومه!

مشهور ليکوال او ممتاز روزونکی زيج زيجلار وايي: «زه پر دې باور وم چې د انسان لپاره تر ټولو بده پېښه دا ده چې په ځمکه کې يې د تېلو څاه يا د سرو زرو خزانه په داسې حال کې وموندل شي چې دی د مرګ پر بستر پروت وي، خو وروسته تر دې هم په بده پېښه پوه شوم او هغه دا چې انسان هغه لويې او حيرانوونکې وړتيا کشف نه کړي چې په داخل کې يې شته دي.»



## ۹۶ یو ځل بیا ناکام شه!!

- ایا هڅه دې وکړه؟ ناکامه شوې؟ مهمه نه ده، یو ځل بیا هڅه وکړه. یو ځل بیا ناکام شه، خو دا ځل هڅه وکړه چې په ښه توګه ناکامه شې. (صمویل بیکیټ)
- زموږ عروج زموږ په نه ناکامېدو کې نه دی، بلکې په دې کې ده چې تر هر ځل ناکامېدو وروسته بیا هڅه وکړو. (کونفیشیوس)
- هغه څوک چې په جرئت سره ناکامۍ ته ور ترغاړې وځي، په پوره خواک سره بریالی کېږي. (رابرټ کینیډي)

## ۹۷ هغه الماس وینې؟!

په (۱۹۴۸) میلادي کال یوه ډله څمک پېژندونکي افریقې ته د الماسو او قیمتي ډبرو د موندلو په موخه ولاړل. په دې ډله کې جاپانی عالم «یوکي» هم شامل و. دی دېرش کلنی ته نږدې عمر لرونکی ځوان و. له تلوسې او احساساتو ډک و او په قربانۍ ورکولو او مشکل خوښونې سره مشهور و.
هغه به سهار وختي پنځه بجې راپاڅېده او د الماسو او نورو قیمتي ډبرو په موندلو پسې به یې خپل ورځنی سفر شروع کاوه او ماخوستن لس بجې به بېرته خپل هوټل ته راستنېده، خو له ډېرو ستړیاوو او هڅو سره سره به یې هېڅ نه وو موندلي. دوه اونۍ وروسته یې پرېکړه وکړه چې خپلو موندنې ودروي او بېرته جاپان ته ولاړ شي، ځکه ده د هېڅ شي د موندلو هیله نه درلوده او دا یې په ژوند کې لومړنی ځل و چې له خپل یوه هدف نه یې په نیمه لار کې لاس اخیست.
په دویمه ورځ یوکي په پنځو بجو خپل کار پای ته ورساوه، اراده یې درلوده چې خپل هوټل ته ستون شي او خپل هېواد د بېرته تګ لپاره ځان چمتو کړي. په لاره کې له یوه ماشوم سره مخ شو چې په لاس کې

بې یوه عجیبه شکل لرونکې ډبره وه. ماشوم له یوکي نه وغوښتل چې ډبره ترې د خو چاکلیټونو په بدل کې وپېري. یوکي چاکلېټ ورکړل لویه ځلېدونکې ډبره یې ترې واخیسته او خپل هوټل ته ستون شو ترڅو تر خپل خانګړي میکروسکوپ لاندې یې وڅېړي. پر خپلو سترګو یې باور نه کاوه، بیا او بیا یې وڅېړله او په دې موده کې یوه دقیقه هم ویده نه شو، ځکه دا هغه تر ټولو لوی الماس و چې یوکي په خپل ژوند کې لیدلی و، هغه چې شاوخوا لس میلیونه ډالره قیمت یې درلود!

یوکي وروسته په خپله څېړنه کې ولیکل چې دې ماشوم لویه شتمني په لاس کې لرله، خو دا چې په ارزښت یې نه پوهېده، نو ځکه یې ارزانه وپېروده. که ماشوم د دې الماس په ارزښت پوهېدای، هېڅکله یې په دومره کم شي نه بدلاوه او که په ارزښت یې پوه وای، ښایي چې همدا الماس د ده او د ده د کورنۍ د بریا سبب شوی وای. بلکې ښایي ټول کلی یې له بې وزلۍ او لوږې ژغورلی وای!

زه له خپله لوري وایم: ډېر خلک په خپلو هغو لا محدودو وړتیاوو نه پوهېږي چې الله تعالی ورکړې، نو خپل وخت ضایع کوي، بلکې ان خپل ژوند په هغو چارو کې ضایع کوي چې هېڅ ارزښت نه لري. ټیک د همدې ماشوم په توګه لکه په خپل لاس کې شته شي په ارزښت چې نه پوهېږي!!

## ۹۸ لویان، خو...!!!

که د لیکوالې اجاتا کریسټې ټول چاپ شوي کتابونه یو د بل دپاسه کېښودل شي، نو یوه غونډۍ به ترې جوړه شي چې لوړوالی به یې د پاریس د ایفل برج هومره وي. په داسې حال کې چې هغه هېڅکله ښوونځي ته نه وه تللې، بلکې د همغه مهال له دود دستور سره سم یې په خپل ښار کې مروجې زده کړې وکړې.

عجیبه خبره دا وه چې اجاتا د ژبو د قواعدو په زده کړه کې ستونزه لرله

او له ماشومتوبه یې حروف سم نه شوای ادا کولای. مور یې لیکوالۍ ته د هغې په هڅولو کې لوی لاس درلود، ان له کوچنیوالي یې دې کار ته هڅوله.
په (۲۰۰۳) میلادي کال کې یوازې په فرانسه کې د هغې د کتابونو اته میلیونه ټوکه وپلورل شول!!
گرانه لوستونکیه! دا کیسه مې ځکه درته وکړه ترڅو دا خبره درته روښانه کړم چې بریا په ډېرو شهادتنامو پورې اړه نه لري او دا چې په یوه یا بله وجه شهادتنامه نه ترلاسه کول په دې معنا نه ده چې گواکې عذر لرې او بریالی کېدای نه شې. بلکې پوهېږې، د نړۍ تر ټولو لوی مخترعین، مشاهیر او لویان د شهادتنامو خاوندان نه وو؟!
نو که د همت، ارادې خاوند یې او غواړې د بریا لوړو پوړیو ته ورسېږې. نو له خپله ذهنه د هغې بریا تصور لرې کړه چې خامخا باید له شهادتنامو سره اړیکه ولري!!

## ۹۹ پر ځان باور ولره او له بحرانونو سره مخ شه!

- **امورو ته په مثبت نظر گوره:**

د وراثت د صفاتو د علم مؤسس راهب منډیل هغه مهال دې علم ته توجه وکړه چې د بل چا ورته پام نه و او په داسې حال کې مړ شو چې د خپل ژوند پر مهال یې له هېرو شویو څېړنو پرته بله هېڅ لویه کارنامه نه وه کړې، خو خلک یې پنځوس کاله وروسته د څېړنو په ارزښت پوه شول!

- **پر ځان باور ولره او خپله وړتیا وپېژنه:**

هنرمند مایکل انجلو پر لاره روان و چې د لارې څنډې ته یې د سنگ مرمر یوه ډبره ولیده، یوه شېبه ورته ودرېد او کله چې یې پرې ملگري د ژر تلو او د ډبرې پر بې ارزښتې ټینگار وکړ، ده یې

په خواب کې وویل: «ملګریه! لږ ودرېږه، دلته مې یوه بندي مجسمه
ولیده، غواړم چې ازاده یې کړم!»
هو، هنرمند دا ډبره ورسره واخیسته او یوه داسې بې ساري مجسمه
یې ترې وتراشله چې خلک ورته ګوته په غاښ پاتې شول!

- **ورو کارونو ته له پاملرنې پیل وکړه:**

اروپا له دوېمې نړۍ والې جګړې نه په داسې حال کې راووته چې
هېڅ یې نه لرل. جګړې خپ خپ کړې وه. تر پنځوس میلیونه ډېر
وګړي یې وژل شوي وو او د ژوندي پاتې شویو اوسېدونکو زړونه او
روحونه یې د کرکې په اور سوځېدل. خو دوی د سولې پر نوي عصر
پیل کړ. په خپلو کې خبرو ته سره کېناستل. سره نږدې شول. په
ګډه یې د ستونزو په حلولو پیل وکړ او په دې توګه یې ورو ورو
وکولای شول چې د اورپا وسمو هېوادونو بود داسې اتحادیه جوړه
کړي چې مشترک قانون او مشترکې پیسې لري او اوس ورته ټوله
نړۍ حېرانه ده!

- **د نورو له تجربو ګټه واخله:**

نوټن وایي: «ما چې کله هم ګوره نوی ښې لیدلي، نو یوازې له دې
امله چې پر خپلو بوډو خلکو پر اوږو سپور شوی وم. خو ارسطو به
ان له کم عقلانو هم پوهه زده کوله او ویل به یې: که څه هم دوی د
بوه کار په کولو ونه شو، هغه کار به نه کوو.

- **ټولنیز کار ته ډېره پاملرنه کوه:**

له اوپسې نه سره به د هغه به کار خانې کې پر اساوو ډېرو همکارانو
د خبرو پر مبنا مرسته کوله او نه هغه ته وه چې په امریکا
کې یې ۱۰۹۷ اختراعات وکړل. توی عالم احمد زویل وایي: هغه
له ۱۵۰۰ ساینسپوهانو سره به کېناسته، کار کوي او که دوی نه وای، نو
زه به د خپلو ناسته سرعت په کشف نه وای توانېدلای.

(فیمتو ثانیه د سرعت یوه نوي ایجاد شوي قیاس ته وایي چې د یوې ثانیې یو ملیاردمه برخه ده.)

- **ځان وروزه او د نوي څه په لټه کې شه:**

انسان له ځارویو سره په دې توپیر لري چې اختراع کوي. ځان روزي او د تر ټولو ښه شي ترلاسه کولو پلټنه کوي او لکه نیوټن چې وایي: «کله هم چې مې کوم نوی شی کشف کړی، ځان مې د هغه وړوکي ماشوم په څېر احساس کړی چې د یوه لوی سمندر مخې ته لوبې کوي.» او لکه زویل چې وایي: «څومره چې ډېر پوهېږم، همغومره ډېر احساسوم چې ناپوه یم او پوهې ته مې تنده لا ډېرېږي.»
له همدې امله د چا ستاینې ته انتظار مه کوه، تا ته د هغوی په مینه در کتلو څخه ځان خلاص کړه، ځکه ته په خپله خپل ځان ته په مینه کتلو وړتیا لرې. هو، له ځان سره مینه وکړه، د روزنې او لوړتیا هڅه یې وکړه، له ستونزو په تېرېدو کې یې مرستندوی شه، نه دا چې ترې وتښتې، ځکه له ستونزو سره مخامخ کېدل دې څواک او ثبات زیاتوي او تل باید په یاد ولرې، کوم ګوزار چې دې نه وژني، هغه دې لا پیاوړی کوي.

## ۱۰۰ تلپاتې ویناوې

- پر ساعتونه درد زغملی شو، خو یوه شېبه ناکامي نه شو زغملی.
- دا چې یوه وړه ډیوه بله کړې، تر دې درته ښه ده چې خپل وخت پر تیارې لعنت ویلو کې تېر کړې.
- څومره ښکلې ده هغه موسکا چې د اوښکو په منځ کې ځان ته لار پیدا کوي.

## کومه ورځ دې له خپلې ناکامۍ خوند اخیستی؟!

اډیسن وایي: «هېڅ داسې څه نه شته چې زما همت مهار کړای شي، ځکه له هرې ناسمې هڅې تېرېدل د مخکې پر لور د یو قدم پورته کولو پرته بل څه نه دي.»
اندلسي وایي: «د اوبو پرله پسې څاڅکي تیږه سوري کوي.»
د یوه نړۍ وال شرکت اجرائیوي رئیس رابرټ جورفیتا وایي: «کله چې له خطر سره مخ شې، کېدای شي ناکامه شې، خو دا یقیني ده کله چې له خطر سره مخ نه شې، خامخا ناکامېږې او تر ټولو لوی خطر دا دی چې هېڅ کار ونه کړې.»
ځینې نور وایي: «بریالي خلک له هڅې لاس نه اخلي، له هڅې لاس اخیستونکي نه بریالي کېږي.»
مخکې تر دې چې هنري فورډ په خپل کاروبار کې بریالی شي، پنځه وارې مفلس شو. والټ ډیزني هم د ډیزني لینډ مشهور ښار تر جوړولو مخکې اووه وارې مفلس شوی و. د (IBM) شرکت کارکوونکو به په خپل منځ کې د (IBM) معنا داسې کوله: (I will be moving) یعنې زه به پرله پسې مخکې ځم!
د مایکروسافټ شرکت مشر بیل ګیټس په یوه ورځ کې اووه ویشت میلیارده ډالر تاوان وکړ، خو مات او تسلیم نه شو، بلکې خپلو هڅو ته یې پرله پسې دوام ورکړ تر دې چې بېرته د خواک، مقام او شتمنتیا حالت ته ستون شو.
راځه د ابراهام لنکن په کیسه کې راسره غور وکړه او دا چې ولې ناکامۍ ته تسلیم نه شو. یوولس وارې د ولسمشرۍ په ټاکنو کې پاتې راغی تر دې چې په دولسم وار د شپېته کلنۍ په عمر د امریکا د تر ټولو مشهور ولسمشر په توګه وپېژندل شو. هغه به ویل: «ته هېڅکله نه ناکامېږې، مګر هغه وخت چې له کاره لاس واخلې.»

## ۱۰۲ پورته شه!

گرانه لوستونکیه! تر هغې به د بریا خوند ونه څکې ترڅو چې بیا بیا ناکامه هڅې تجربه نه کړې. که ته د پیاوړې ارادې او مقاومت خاوند یې، نو زړبری درکوم چې ان شاء الله پر سمه لاره روان یې او دا اوس چې د ناکامۍ کوم گوزارونه خورې، دا دې د اوسپنې د ټکېدو په څېر لا پیاوړی کوي، نو کله هم چې را پرېوتې، بېرته پورته شه او لاره پوره کړه.

## ۱۰۳ بندې دروازې!

کله چې خپل اهداف وټاکې، عقل پرانیزې او ښه ژور فکر وکړې، نو درته څرگنده به شي چې نړۍ به د خپلو خزانو ډالیو دروازې درته پرانیزي. په حقیقت کې ډېری ترل شوې دروازې یوازې ستا په عقل کې دي، نو که پر خپل رب او خپل ځان باور ولرې او خپلو ښکاره اهدافو ته هیله من واوسې، هېڅ داسې دروازه نه شته چې پرانیستل یې سخت وي. لا نور صبر او ډېر ټینگار ستا کیلیگانې سالمې ساتي او نه پرېږدي چې د ناکامۍ په زړو قلفونو کې ماتې شي.

## ۱۰۴ که ناکامه شوې، مه خجالته کېږه!

- بیټ نیمیث گراهام په یوه بانک کې د سکرترۍ په توگه کار کاوه. د سکرترۍ په توگه یې خپل کار کې ډېره هڅه کوله. له اوبو او د رسم له ځینو رنگونو یې یوه مایع جوړه کړه چې د شرکت د لیکونو املایي غلطۍ به یې پرې پټولې. دا مایع به له پاڼې سره یوځای کېده او غلطي به یې په ښه توگه پټوله. د مایع ښه والي ته په کتو بیټ پرېکړه وکړه چې په شیشه یي بوتلونو کې یې واچوي او د خپل کور له گاراج نه به یې خرڅوله. څو کاله وروسته د گیلیټ مشهور شرکت له بیټ نه د هغې اختراع په (۵.۴۷) میلیونه ډالره وپېرله او اوس د (Paper Liquid) په نوم یادېږي.

- ورځني لالهاندي، او پر هغې رستورانټ تکراري غوسې چې ده په پکې کار کاوه او د هر سباناري پر مهال به یې ورته سوځېدلې دوډۍ پخولې، چارلز سټرایټ د دې ور کړ چې د اتومات ډوډۍ پخولو داش اختراع کړي.
- همدا ناکامي وه چې کیمونز ویلسن یې په (۱۹۵۲) میلادي کال په کمو پیسو او د ښو خدمتونو په وړاندې کولو د ټینیسي ایالت په ممفیس ښار کې د لومړني (هالیډې اِن) هوټل جوړولو ته وهڅاوه، ځکه هغه او کورنۍ یې له هغو ګران بیه او ناپاکو هوټلونو څخه چې خپلې رخصتۍ به یې پکې تېرولې، سخت خپه وو.
- فرانک ماکنمارا په (۱۹۵۰) میلادي کال د «داینرز کلب کارډ» په نوم لومړنی ضمانت کارت اختراع کړ او دا وروسته تر دې چې په یوه خوړنځي کې د ماښامنۍ د بیل ادا کولو پر مهال د خپلو پیسو د بټوې ورکېدو ته متوجه شو.
- ښايي ستونزې دې ځینې مهال د وباړونو پر دروازې د ننوتو لامل شي، نو مه ترې وېرېږه، بلکې په کافي اندازه هوښیار اوسه چې ګټه ترې واخلې!

## ۱۰۵ د بریا فصل!

«رای مایر» د (The Pool) په بوهنتون کې د باسکټ بال لوبډلې مشري په غاړه درلوده او خپله لوبډله یې په پرلپسې (۴۲) لوبو کې بریا ته رسولې وه. په همدې حېرانوونکې موده کې نوموړې لوبډلې وکولای شول چې په خپل بوهنتون کې پرلپسې (۲۹) نورې برياوې ترلاسه کړي، خو تر دې وروسته له ناکامۍ سره مخ شوه. خبریالانو له مایر سره اړیکه ونیوله او په دې اړه یې د ده نظر وپوښت. مایر په ځواب کې وویل: طبعاً، اوس د دې پر ځای چې د نه ناکامېدو په اړه فکر وکړو، باید د بریا په اړه ډېر فکر وکړو!

## ۱۰۶ امورو ته په مثبت نظر ګوره!

یو سهار چې اډیسن خپلې کارخانې ته پر لاره و، ورته معلومه شوه چې ټولې کارخانې یې اور اخیستی. یو شاګرد یې په منډه راغی او په چغو یې وویل: اوس به څه کوو، اور مو کارخانه له خاورو سره خاورې کړه او نور مال او بیمه هم نه لرو؟!

اډیسن ارام ودرېد، خپل شاګرد ته یې وخندل او ویې ویل: آآه... دا څومره ښه موقع ده چې خپله کارخانه په ښه شکل له سره ورغوو!

پوښتنه:

ای هغه انسانه چې فکر کوې ټولې نړۍ په ناڅاپي توګه اور اخیستی! ستا او اډیسن ترمنځ د همداسې یوه ناڅاپي خبر په ښه راغلاست کې څه توپیر دی؟!

پربږده چې خبره درته ښه روښانه کړم، دا اړینه نه ده چې خامخا یوه کارخانه ولرې او هغه دې اور واخلي، بلکې داسې فکر وکړه چې خپل اسناد دې راخیستي او دلته هلته په کومې دندې یا پروژې ترلاسه کولو پسې ګرځې او غوښتنه دې رد شوه، ښه نو اوس به داسې یوه خبر ته څنګه ښه راغلاست وایې او رواني حالت به دې دا مهال څنګه وي؟

ایا د الله تعالی دا وینا به تکراروې:

﴿وَعَسَىٰ أَن تَكْرَهُوا شَيْئًا وَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ﴾

«کېدای شي چې یو شی تاسې ته ناکاره وي او هماغه ستاسې لپاره ډېر غوره وي.»

ایا د اډیسن په شان به وخاندې او له نوي سره به هڅه پیل کړې؟

ایا دا هڅه به وکړې چې د یوه بدیل قدم پورته کولو په اړه فکر وکړې، داسې قدم چې ستا د ارمانونو ریښتیني پیل وي؟!

ایا ژاړې به، ستوماني به احساسوې، تندی به ګونځې کوې، خپل بخت به سپېره بولې او پر خپل ځای به ودرېږې؟

د دې بوښتنو ځواب تا ته پربږدم، ځکه ته ځان تر نورو ښه پېژنې. له زړه نه هیله لرم چې ناکامۍ ته ماتې ورکړې، نه دا چې تا مات کړي!

## ۱۰۷ منفي پیغامونو ته ښه راغلاست مه وایه!

- اسلام هغه منفي پیغامونه رد کړي چې انسان یې له خپله داخله یا دباندې ترلاسه کوي او د همت ټیټېدو او ارادې سستېدو لامل یې کېږي.

الله تعالی خپل رسول ته په خطاب کې فرمایي:

﴿وَ لَا يَحْزُنْكَ الَّذِيْنَ يُسَارِعُوْنَ فِي الْكُفْرِ ۚ اِنَّهُمْ لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ شَيْـًٔا ؕ يُرِيْدُ اللّٰهُ اَلَّا يَجْعَلَ لَهُمْ حَظًّا فِي الْاٰخِرَةِ ۚ وَ لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ﴾

[ال عمران: ۱۷٦]

«هغوی چې د کفر لپاره هلې ځلې کوي، باید تا خپه نه کړي. دوی الله تعالی ته هېڅ زیان نه شي رسولای، الله تعالی غواړي چې دوی ته په اخرت کې برخه ونه لري او دوی ته لوی عذاب دی.»

- کله چې مسلمانانو ته د اُحد پر ورځ کافرانو ته د بدر پر ورځ د اوښتي ځاني زیان دوه چنده زیان واوښت، الله تعالی دا مهال دا آیت نازل کړ:

﴿اَوَ لَمَّاۤ اَصَابَتْكُمْ مُّصِيْبَةٌ قَدْ اَصَبْتُمْ مِّثْلَيْهَا...﴾

[ال عمران: ۱٦۵]

«هغه مهال چې تاسې ته د هغوی دوه چنده زیان واوښت...»

- الله تعالی خپل بنده (یوسف) ته له پرېشانۍ او بلا نه د راوتو زیری واوراوه، هغه مهال چې هغه له ستونزو سره مخ و او دا له دې امله چې پرې نازل شوی مصیبت کم شي. الله تعالی فرمایي:

﴿وَ اَوْحَيْنَاۤ اِلَيْهِ لَتُنَبِّئَنَّهُمْ بِاَمْرِهِمْ هٰذَا وَ هُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ﴾

[یوسف: ۱۵]

«نو موږ يوسف ته وحې وکړه چې يو وخت به راشي چې ته به دوی ته دغه حرکت ور په زړه کړې او دوی د خپل کار له نتايجو ناخبره دي».

- د يوسف عليه السلام خوب هم په همدې توګه و، کله چې به يعقوب عليه السلام ته ور په ياد شو، پر زړه به يې د هيلې نرې باد راتېر شو. له همدې امله وه چې ويلي يې وو:

﴿يَٰبَنِيَّ ٱذۡهَبُواْ فَتَحَسَّسُواْ مِن يُوسُفَ وَأَخِيهِ وَلَا تَاْيۡـَٔسُواْ مِن رَّوۡحِ ٱللَّهِۖ إِنَّهُۥ لَا يَاْيۡـَٔسُ مِن رَّوۡحِ ٱللَّهِ إِلَّا ٱلۡقَوۡمُ ٱلۡكَٰفِرُونَ﴾ [يوسف: ۸۷]

«زما زامنو! ولاړ شئ د يوسف او د هغه د ورور څه پته ولګوئ، د الله له رحمت نه مه نهيلي کېږئ، د هغه له رحمت نه کافران نهيلي کېږي».

- الله تعالی د موسی عليه السلام د بېرته ورستنولو په زېري سره د موسی د مور وېره له منځه يوړه. فرمايي:

﴿وَأَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰٓ أُمِّ مُوسَىٰٓ أَنۡ أَرۡضِعِيهِۖ فَإِذَا خِفۡتِ عَلَيۡهِ فَأَلۡقِيهِ فِي ٱلۡيَمِّ وَلَا تَخَافِي وَلَا تَحۡزَنِيٓۖ إِنَّا رَآدُّوهُ إِلَيۡكِ وَجَاعِلُوهُ مِنَ ٱلۡمُرۡسَلِينَ﴾ [قصص: ۷]

«موږ د موسی مور ته اشاره ورکړه چې: ده ته تی ورکړه. بيا کله چې له تا سره د هغه د سر خطر وي، نو هغه په سيند کې وغورځوه او هېڅ انديښنه مه کوه، موږ به هغه همدا تا ته بېرته راولو او هغه به د پېغمبرانو په ډله کې شامل کړو».

- يوه ورځ چې رسول الله صلی الله عليه وسلم د أحد پر غره ودرېد او صحابه کرامو رضي الله عنهم پر دغه غره خپله خوړلې ماتې راپه زړه کړه، نو رسول الله صلی الله عليه وسلم وغوښتل چې دا منفي پيغام يې زړونو ته ښکته نه شي، همغه وو چې د دې منفي احساس له منځه وړلو په موخه يې وفرمايل:

﴿أُحُد جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَنُحِبُّهُ﴾
«أحد له موږ او موږ له هغه سره مينه لرو.»

- كله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم پر «جمدان» نومې غره تېرېده او ځينو كسانو دې نوم ته هيله مندي ونه ښوده، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل:

﴿سِيرُوا هَذَا جُمْدَانُ سَبَقَ الْمُفَرِّدُونَ. قَالُوا: وَمَا الْمُفَرِّدُونَ يَا رَسُولَ اللهِ؟ قَالَ: الذَّاكِرُونَ اللهَ كَثِيرًا وَالذَّاكِرَاتُ﴾
«درومئ، دا جمدان دى او مفردون بريالي شول.
صحابه و وپوښتل: مفردون څوک دي؟
ويې فرمايل: هغه نارينه او ښځينه چې الله تعالى ډېر يادوي.»

- د نبوي هجرت پر مهال، كله چې ابوبكر الصديق رضي الله عنه په غار ثور كې پر رسول الله صلى الله عليه وسلم د مشركانو له ضرره ووېرېد او ويې ويل:
«كه د دوى كوم كس خپلو پښو ته وګوري، نو موږ به ووينې.»
رسول الله صلى الله عليه وسلم د ابوبكر ذا سلبي (منفي) پيغام رد كړ او په پوره ثبات او يقين سره يې وفرمايل:
«اى ابوبكره! د هغو دوو كسانو په اړه دې څه ګومان دى چې درېيم يې الله تعالى دى؟»
په همدې اړه الله تعالى دا آيت نازل كړ:

﴿إِلَّا تَنصُرُوهُ فَقَدْ نَصَرَهُ اللَّهُ إِذْ أَخْرَجَهُ الَّذِينَ كَفَرُوا ثَانِيَ اثْنَيْنِ إِذْ هُمَا فِي الْغَارِ إِذْ يَقُولُ لِصَاحِبِهِ لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا ۖ فَأَنزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ عَلَيْهِ وَأَيَّدَهُ بِجُنُودٍ لَّمْ تَرَوْهَا وَجَعَلَ كَلِمَةَ الَّذِينَ كَفَرُوا السُّفْلَىٰ ۗ وَكَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا ۗ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ﴾
[توبه: ۴۰]
«كه تاسې له پېغمبر صلى الله عليه وسلم سره مرسته ونه كړه، نو

هیڅ پروا نشته، الله د هغه مرسته په هغه وخت کې هم کړې ده کله چې کافرانو هغه ویستلی و. کله چې هغه صرف د دوو دویم و، کله چې هغوی دواړه په سمڅه کې وو او کله چې هغه خپل ملګري ته وویل: مه خپه کېږه، الله له موږ سره دی. په هغه وخت کې الله تعالی له خپل لوري پر هغه د زړه ډاډینه نازله کړه او په داسې لښکرو سره یې د هغه ملاتړ وکړ چې تاسې نه لیدل او د کافرانو وینا یې ټیټه کړه او هماغه د الله تعالی وینا لوړه ده، الله زورور او پوه حکمت والا دی.»

- نو هیله من اوسه او له هغو سلبي پیغامونو ځان وساته چې ستا لا شعوره ضمیر یې ستا د ملګرو، کورنۍ او شاخوا خلکو له لوري درته وړاندې کوي. هېڅ ته اجازه مه ورکوه چې عقل دې له سلبي پیغامونو در ډک کړي. بلکې په ایجابي پیغامونو ځان وروزه او خیر ته هیله من اوسه، که د خدای خوښه وه، خامخا به یې ومومې. پر دې هم پوه شه چې هر سلبي پیغام ته ښه راغلاست ویل د ناکامۍ پر لور لومړنی قدم دی، نو پام چې پورته یې نه کړې!

## ۱۰۸ یوازې څو دانې تباشیر په کار دي!

کله چې اینشټاین «برینسټن» پوهنتون ته ورسېد، اداري مدیر ترې د هغو اړتیا وړ توکو په اړه پوښتنه وکړه چې ده ورته د خپلو څېړنو پر مهال اړتیا درلوده، نو اینشټاین ورته په ځواب کې وویل: یوازې یوې تورې تختې، څو دانې تباشیرو، څو پاڼو او څو دانې پنسلو ته اړتیا لرم!

دلته وه چې مدیر د دې لوی نابغه دې ساده غوښتنو ته هک حیران پاتې شو!

مخکې تر دې چې مدیر خپله خبره وکړي، اینشټاین زیاته کړه: یوه لویه کثافت دانۍ هم باید څنګ ته راسره ایښې وي!

مدیر وپوښتل: هغه د څه لپاره؟

اينشټاين په موسکا وويل: لکه چې وينې، ښايي د خپل کار پر مهال په حسابونو کې ډېرې تېروتنې وکړم، نو که کثافت دانۍ وړه وي، ژر به ډکه شي!

- دې نابغه پر دې خبره پوخ باور درلود چې د تېروتنو ډېروالی د انسان پر سخت کوښښ دلالت کوي. نو څوک چې تېروتنه ونه کړي، بريالی کېدای نه شي، ځکه بيا په اسانۍ سره هېڅ شی نه شي زده کولای!

## ۱۰۹ مه خپه کېږه!

- پېښو ته په ايجابي (مثبت) نظر کتل که څه هم چې د اټکل خلاف وي، د بريالي انسان ذهن د لوړوالي او له فرصتونو د ګټې اخيستو لرې حدودو ته بيايي، سره له دې چې ناکام انسان ورته د نړۍ پای ته رسېدو په سترګه ګوري. هڅه وکړه چې د امورو پر وړاندې خپل نظر بدل کړې، که څه هم چې پيل يې تت په نظر درشي. وروسته په ايجابي نظر ورته وګوره، بيا به ووينې چې څومره حيرانوونکې پايلې ترلاسه کوې. يوې بلې ته دې هم پام وي، د نړۍ بدلولو هڅه مه کوه، په داسې حال کې چې د خپل ځان بدلولو نه عاجز يې!

## ۱۱۰ د نړۍ تر ټولو چټکه ښځه!

«ويلما» د ټينيسي ايالت په يوه غريبه کورنۍ کې وزېږېده، په څلور کلنۍ کې په يوه داسې مرګونې ناروغۍ اخته شوه چې وروسته ترې د ماشومانو د فلج په ناروغۍ اخته شوه. هغې بايد د خپلې ملا د ساتنې په موخه ملابند اغوستی وای. ډاکټر ورته دا هم ويلي وو چې هغه به هېڅکله ونه کړای شي چې پښې پر ځمکه ولګوي، خو مور يې ډاډ ورکړی و چې د لوی خدای په مرسته، پرلپسې هڅو او پوخ باور سره هر هغه کار کولای شي چې غوښتې يې وي. ويلما خپلې مور ته وويل: چې

داسې ده، نو غواړم چې د منډې په سیالۍ کې د نړۍ تر ټولو چټکه ښځه شم!

د عمر په نهه کلنۍ کې یې د ډاکټر د لارښوونې برخلاف له خپلې ملا نه تاو کړې ملابند لرې کړ او لومړنی هغه کار یې وکړ چې ډاکټرانو ویلي وو، ویلما به یې هېڅکله ونه شي کړای. په دیارلس کلنۍ کې یې خپله لومړنی د ځغاستې سیالي ترسره کړه، خو تر ټولو وروستۍ شوه او تر بیا بیا به وروستۍ راتله. بیا یې په دویمه سیالۍ کې برخه واخیسته، بیا په درېیمه او څلورمه کې، خو هر ځل به وروستۍ راتله.

په پنځلس کلنۍ کې د ټینیسي پوهنتون ته ولاړه، هلته له یوه روزونکي سره چې «اېډ ټمپل» نومېده مخ شوه. هغه ته یې وویل: غواړم د ځمکې پر مخ د ځغاستې په سیالۍ کې د نړۍ تر ټولو چټکه ښځه شم. ټمپل ورته وویل: ستا پر روح مې دې قسم وي چې هېڅوک دې مخه نه شي نیولای، زه درسره په دې لاره کې هر ډول مرسته کوم.

ویلما د اولمپیک په نړۍ والو لوبو کې ونډه واخیسته او د «جوتا» په نوم له یوه ښځې سره یې چې مخکې هېڅکله نه وه ناکامه شوې، مسابقه وکړه. لومړنۍ مسابقه یې د (۱۰۰) مترو ځغاسته وه، په مسابقه کې یې جوتا ته ماتې ورکړه او خپل لومړنی د سرو زور مډال یې ترلاسه کړ. دویمه مسابقه یې د (۲۰۰) مترو ځغاسته وه چې بیا هم په کې بریالۍ شوه او د سرو زرو دویم مډال یې ترلاسه کړ. درېیمه پرلپسې مسابقه یې د (۴۰۰) مترو ځغاسته وه او دا ځل هم له جوتا سره مخامخ وه. په دسته جمعي ځغاسته کې هم د برق په شان چټکه وځغلېده او د درېیم ځل لپاره یې جوتا ته په ماتې ورکولو سره د سرو زرو مډال ترلاسه کړ.

په دې توګه ویلما د تاریخ په پاڼو کې د تل لپاره خپل نوم ثبت کړ. هو، همغه عاجزه ښځه د (۱۹۶۰) میلادي کال په اولمپیک لوبو کې د ځمکې پر مخ د نړۍ تر ټولو چټکه ښځه وبلل شوه!

- ډاکټرانو خپلو طبي څېړنو او تجربو په کتو د ویلما په اړه دا پرېکړه کړې وه چې هېڅکله به پر خپلو پښو ونه شي درېدای او

که یې د دې کار هڅه وکړه، خامخا به له ناکامۍ او نهیلۍ سره مه شي، خو دوی د ویلما روح او ستونزې چیلنجوونکې طبیعت ته اصلا پاملرنه نه وه کړې. ویلما د بریا ترلاسه کولو قوي تلوسه درلوده او په داخل کې یې همدا د ایمان ځلېدونکې شغله وه چې هر ناممکن کار یې ورته ممکن کړ او پر ځان په پوره باور درلودو سره یې د ویاړونو پر لور قدم واخیست!

- که چېرته ویلما خپلې هیلې د خپل معیوبیت په زندان کې بندي کړې او د ډاکټرانو پرېکړې ته تسلیم شوې وای او همدې ته په کتو یې خپلې اهداف او هیلې ټاکلي وای، نو څه فکر کوې بیا یې کولای شول چې د نړۍ د تر ټولو چټکې ښځې ویاړ ترلاسه کړي؟!

## ۱۱۱ پوښتنه!

پوښتنه دا نه ده چې ایا پرې به وځې که نه، بلکې دا ده چې ایا تر پرېوتو وروسته به بېرته راپورته شې که نه؟ (فینس لومباردي)

## ۱۱۲ والوځه چې ډوب نه شې!

د کاناډا د ټورنټو ښار د لوړو زده کړو د یوې موسسې څېړونکو د «عادت کېدو» په اړه یوه علمي څېړنه پیل وکړه. دوه خېز وهونکي ملخان یې د اوبو په یوه نیم ډک شوي بوتل کې بند کړل او بیا یې د پنبې په ډکو سره سر ور بند کړ. طبیعي خبره وه چې ملخانو له بوتل نه د وتو هڅه کوله، نو خېزونه یې شروع کړل ترڅو په اوبو کې ډوب او مړه نه شي، خو هر ځل چې به یې خېز کړل، ډېر سخت به د پنبې له ډکو سره ولګېدل تر دې چې په پای کې یې له خپلې هڅې لاس واخیست، ځکه که بیا یې خېز وهلی وای، ډکو به لا نور زخمي کړي وای.

تر دې وروسته چې څېړونکو د بوتل له سر نه ډکي لرې کړل او سر

خلاصی یې پرېښود، متوجه شول چې ملخان د ځان ژغورلو هڅه نه کوي، ځکه د خپلې دماغي برنامې له امله د «نه هڅې» په عادت، عادت شوي وو او تر هغې په اوبو کې پاتې شول چې پکې ډوب او مړه شول!
د دې څېړنې پایله دا راووته چې هغه چُست ملخان چې له یوه ځای نه بل ځای ته د تلو په موخه به یې جگ ځېزونه وهل، ترڅو ځلې هڅو وروسته یې هیله له لاسه ورکړه او یو بل نوی عادت یې خپل کړ. دې عادت په دې قانع کړل چې نور ځېزونه باید ونه وهي او ځان لا نور ژوبل نه کړي او دا د هغه تکرار او د ورته پېښو او پایلو د ډېروالي امله چې دوی ورسره مخ شوي وو. دې حالت د بوتل تر سر خلاصولو وروسته په دوی کې د «هڅې نه کولو» عادت را منځ ته کړی و.
د څېړنې په پایله کې څېړونکو ته جوته شوه چې د انسان عادتونه هم په عین شکل دي، یعنې تر یو ځل ډېر د یو عادت تکرار او له هغې سره د حواسو حتمي اړیکه. هر ځل چې انسان یو عادت تکراروي، په ژوره توگه یې په لا شعور کې ځای پر ځای کېږي، بیا چې په راتلونکې کې له عین حالت سره مخ شي، عادت یې مجبوروي چې په عین شکل عکس العمل وښیي

- خپله ناسمه ذهني برنامه له سره وه ارزوه، بلکې هڅه وکړه چې په ژوره توگه یې بدله کړې. له ځانه د لا شعور بندیوان مه جوړوه چې هر ځل درباندې عینې کار کوي. هڅه وکړه چې لا شعور دې له نوي سره داسې پروگرام کړې چې هېڅکله ناکامۍ ته تسلیم نه شي، د هڅې نه کولو عادت رد کړي او د ستونزو پر مهال خېز ووهي!

## ۱۱۳ زړه دې نه چوي!

تر پنځوس کاله مخکې پورې ځغاستونکي په دې عقیده وو چې انسان تر څلورو دقیقو په کم وخت کې یو میل واټن نه شي وهلای او که چا

هڅه وکړه چې تر دې په کم وخت کې يې ووهي، نو زړه به يې وچوي!
يوه لوبغاړي وپوښتل: ايا داسې کوم تېر شوی چې د دې کار هڅه يې کړې او زړه يې چاودلی وي؟
د خپلې پوښتنې ځواب يې «نه» ومونډ، نو تمرين يې شروع کړ تر دې چې پخوانی ريکارډ يې مات کړ او نوموړی واټن يې تر څلورو دقيقو په کم وخت کې وواهه.
په پيل کې نړۍ والو داسې ګومان وکړ چې دا سړی لېونی دی او يا دا چې ساعت يې سهي کار نه کوي، خو کله چې يې په خپلو سترګو وليد، ريښتينی يې وګاڼه. په هماغه کال شاوخوا سلو تنو نورو لوبغاړو هم وکولای شول چې زوړ ريکارډ مات کړي.
معلومه خبره ده چې سلبي (منفي) قناعت دوی له هڅې کولو منعه کړي وو، خو کله يې چې قناعت ترلاسه شو، هڅه يې وکړه.
هو، دا ناسم قناعتونه او حکمونه وو!

## ۱۱۴ په خوله کې دې سنګريزه کېږده!

د يونان مشهور خطيب او سياسي مشر ډيموستين ډيموشينيس کمزوری او ټيټ غږ درلود، په خبرو کولو کې يې ستونزه درلوده او ساه يې دومره تنګه وه چې يوه جمله به يې تر پايه په يوه ساه نه شوای ويلای، بلکې په منځ منځ کې به يې څو ساګانې اخيستې.
ټولې لومړنۍ هڅې يې د خلکو له پسپسک او رېشخند سره مخ شوې، تر بيا بيا ناکامۍ وروسته سخت ستړی شوی و، نو پرېکړه يې وکړه چې د وياندويۍ په فن کې له خپلو ټولو هڅو لاس واخلي، خو د ده د يوه اورېدونکي باور دې ته وهڅاوه چې خپلې مبارزې ته دوام ورکړي، نو همدا وه چې د دويم ځل لپاره د خلکو پر وړاندې را ښکاره شو، خو له بده مرغه چې دا ځل هم د تېر په څېر د خلکو له پسپسک او رېشخند سره مخ شو. کله چې څوړند سر له ستيج نه را ښکته کېدو په حال کې

و، یوه مشهور هنرمند بیا وهڅاوه چې خپلو هڅو ته دوام ورکړي او پر خپلې ستونزې غالب شي. کله کله به یې ژبه دومره نښته چې ان ځینې ابجد حروف به یې هم نه شوای تلفظ کولای او مخکې تر دې چې یوه جمله ووایي، ساه به یې ډوبه شوه!

په پای کې یې پرېکړه وکړه چې په هر قیمت وي، باید ویناوال شي، نو سمندر غاړې ته ولاړ، د ماتو څپو د اواز مخې ته یې تمرین پیل کړ او په خوله کې به یې وړې وړې تېږې ایښې وې ترڅو د ژبې بندېدو پر ستونزه په برلاسي کېدو کې ورسره مرسته وکړي. وړې تېږې به یې د دې لپاره هم په خوله کې ایښودلې چې ځان د خلکو له پسپسک او شور سره عادت کړي.

خپل نفس یې دې ته مجبور کړی و چې د سمندر پر غاړه د ګرځې را ګرځېدو تمرین وکړي او پر لوړو او خورا سختو ځایونو پورته وخېژي. له دې ناشنا کارونو سربېره به د اوږدو ساعتونو لپاره د هینداره مخ ته درېده او د وینا کولو تمرین به یې کاوه.

خومره ناشنا عزم یې درلود، بلکې خومره پیاوړې اراده یې درلوده! هېڅ د حیرانتیا خبره نه ده چې نوموړی وروسته د خپل عصر تر ټولو لوی ویناوال شو او تر دوه زره کالو تېرېدو وروسته یې هم شهرت پر خپل ځای پاتې دی، ان تر نن ورځې!

- د ناکامۍ یو تعریف داسې شوی چې: د ټینګار کولو تر ټولو ادنی حد!
- که ناکامۍ ته په ژور نظر وګورې، دا دې د عروج پر لور لومړنی ګام دی. د هغو لویانو له تجربو ګټه واخله چې هېڅکله یې ناکامۍ ته غاړه نه ده ایښې او کله چې مجبوره شوي، ان وړې تېږې یې په خوله کې ایښې!



## ۱۱۵ غوږونه دې کاڼه کړه!

څومره چې ارزښت ولرې، په هماغه اندازه نیوکې به دربانديې وشي، نو نیوکه کوونکو ته دې زړه مه تنګوه، ځکه دوی په خپلو تندو نیوکو سره ستا د بریا دلیل په لاس درکوي!

تر ټولو مهمه خبره دا ده چې پر نیمه لاره ونه دریږې. پر هر هغه غږ خان کوڼ کړه چې ښايي هیلې دې در ووژني او تل باید په یاد ولرې چې شنډه ونه هیڅوک په ډبرو نه ولي!

## ۱۱۶ همدا اوس پورته شه!

- ناکامي یوه داسې تجربه ده چې بریا ترې زیږیږي، نو تر کومه چې هڅه کوې، هیڅکله به ناکامه نه شې.
- د ناکامۍ له ښېګڼو یوه دا ده چې د سم لوري په ټاکنه کې دې زړه نازړه توب ختموي.
- د وړو همتونو له خاوندانو سره مه کېنه. ځکه وېره شته چې ناکامي درته د غر په څېر لويه او د بریا لارې درته تنګې ښکاره کړي.
- ژر تر ژره د ناکامۍ د لاملونو په څېړنه بوخت شه او دا چې څه دې باید کړي او څه نه وای کړي.
- له خپله ځایه پورته شه او د یوې بلې هڅې لپاره ځان تیار کړه او هیڅکله مه نهیلی کېږه.

## ۱۱۷ مریي و، خو سفیر شو!

فریدریک ډوګلاس د یوې ډېرې بې وزلې کورنۍ غړی و. دا پرته له دې چې د مریيتوب په حالت کې د پنبې په پټي کې زیږیدلی و او د ځان روزنې او ملګرو پیدا کولو له هر فرصت نه لرې و.

ګرانه لوستونکیه! راځه د یوې شیبې لپاره داسې وبولو کله چې

غور اینبي و، هغه ورته د خپل سفر لامل ووایه، خو حکیم ورته وویل

چې اوس د نېکمرغۍ راز نه شي ورته ویلای. حکیم خوان ته په ماڼۍ
کې د څه وخت لپاره د پاتې کېدو وویل او دا چې دوه ساعته وروسته
باید بیا ورسره وګوري. حکیم ورته دا هم وویل: غواړم یوه ښېګڼه راسره
وکړې، بیا یې خوان ته یوه کوچنۍ کاشوغه ورکړه او دوه څاڅکي غوړي
یې هم پکې واچول. بیا یې زیاته کړه: دلته د پاتې کېدو پر مهال دې
کاشوغې ته ډېر پام کوه چې غوړي درنه توی نه شي.

خوان به ماڼۍ ته د پورته کېدو او ترې ښکته د را کوزېدو پر مهال پر
کاشوغه سترګې ښخې کړې وې چې غوړي ترې توی نه شي. دوه ساعته
وروسته بیا د حکیم خوا ته ورغی، هغه ترې وپوښتل: د خوراک په کوټه
کې دې ایراني فرشونه ولیدل؟ هغه باغ دې ولید چې د باغونو مسؤول
یې د رغونې لپاره لس کاله خواري کړې وه؟ او زما په کتابتون کې دې
ډول ډول کتابونه ولیدل؟

خوان حیران پاتې شو او سمدستي یې اعتراف وکړ چې هېڅ شی یې
هم نه دی لیدلی، ځکه ټول فکر یې پر کاشوغه ور ټول و چې غوړي
ترې توی نه شي. حکیم ورته وویل: ښه نو ښېرته ولاړ شه او د ماڼۍ
ننداره مې وکړه. خوان په پوره ډاډ سره کاشوغه له ځانه سره واخیسته
او د ماڼۍ ننداري ته ووت، خو دا ځل یې د کاشوغې پر ځای پر دېوالونو
را ځړول شویو نقاشیو، باغونو، نږدې غرونو او د ګلانو ښکلا ته پام ور
اووښتی و. کله چې ښېرته د حکیم خوا ته راغی، ټوله کیسه یې ورته
وکړه. حکیم ترې پوښتل: هغه دوه څاڅکي غوړي چې مې درکړي وو،
څه شول؟

خوان چې خپلې کاشوغې ته وکتل، غوړي ترې توی شوي وو. دا مهال
حکیم وویل: ښه نو اوس درته د نېکمرغۍ یوازینی راز وایم او هغه دا
چې: «د نېکمرغۍ راز دا دی چې د نړۍ ټولو ښکلاوو ته وګورې، خو په
کاشوغه کې دې دوه څاڅکي غوړي هم له یاده ونه باسې.»

- بریالی او نېکمرغه انسان هغه دی چې تل یې خپل هدف

هدف

ته پام وي، خو دا پرته له دې چې د خپلې شاوخوا پېښې له پامه وغورځوي، بلکې ښايي چې له پېښو سره ایجابي (مثبت) تعامل وکړي، د خپل فکر زاويه پراخه کړي او ژوند ته په شامل او کامل نظر وګوري. په دې توګه دا درک کوي چې که ژوند په يوه پړاو کې په ټپه ودرېد، ښايي په بل پړاو کې بېرته روان شي، ځکه نو تل بايد د ژوند د پړاوونو ترمنځ موازنې ته متوجه وي.

- که ته نېکمرغه وې، په دې معنا نه ده چې خامخا به بريالی هم يې، دا خبره بالعکس هم پر ځای ده. يوازې د ژوند له ښکلاوو خوند واخله، خو پام دې وي چې له کاشوغې دې غوړي توی نه شي!

## ۱۲۰ ان تر ځنکدنه هڅه وکړه!

- ممکنه نه ده چې د خپل نيت او هغې ارادې پر اساس چې ترسره کوې يې، ښه شهرت ترلاسه کړې. (هنري فورډ)
- بريا د «کولای شم» او ناکامي د «نه شم کولای» له کلمې راشنه کېږي. (مجهول)
- هغه غوره پلان چې په سمدستي او پايښت لرونکې توګه عملي شي، تر هغه نمونه يي پلان ډېر غوره دی چې په راتلونکې اونۍ کې عملي کېږي. (جنرال جارج باټن)
- خلک درې ډلې دي: هغوی چې پېښې را منځ ته کوي، هغوی چې د پېښو را منځ ته کېداويني او هغوی چې د را منځ ته شوې پېښې په اړه پوښتنه کوي. (جان نيو برن)
- خپل ځان ته په کمه سترګه مه ګوره، ځکه همدا دې هر څه دي. (جانيس جولين)
- د ژوند هدف دې دا نه دی چې يوازې زده کړه وکړې، بلکې بايد هغه څه عملي کړې چې زده کړي دې دي. (لوګوف)

- کله چې په ژوند کې د خپلې برخې له ترلاسه کولو لاس اخلې، نو د ځنکدن په حالت کې یې. (الیانور روزویلټ)
- هغه چې د یوه کار ترسره کولو هڅه کوي او ناکامېږي، تر هغه ځا ډېر غوره دی چې د یوه کار ترسره کولو هڅه نه کوي او بریالی کېږي. (لوید جیمز)
- نهیلي، تندي، ځان نا امنه احساسول، یوازېتوب، شک، سستي او وزګارتیا د ناکامۍ اساسي عناصر او ستا دښمنان دي. نو ترې ووېرېږه. (میکسویل ماټ)

## ۱۲۱ راتلونکې دې رسم کړه!

د ځان روزنې او ادارې مشهور امریکایي عالم پیټر ډارکر وايي: د راتلونکې په اړه د وړاندوینې تر ټولو غوره طریقه دا ده چې په خپله یې جوړ کړو.

په موږ کې داسې څوک شته چې نه غواړي نېکمرغه، شتمن او ټولو ته ګران وي او یادونه یې په خیر سره وشي؟

دا ټول په هیلو، ناستې او کومې بلې وسیلې له لارې چې مخ ته دې بوځي، نه ترلاسه کېږي، بلکې ښايي چې د نفس واګې دې په خپل لاس کې واخلې او د الله تعالی په مرسته خپله خپل راتلونکی جوړ کړې.

## ۱۲۲ خلک دې خاندي که نه!!!

- تاریخ د مشهور سندرغاړي، بېتهوفن نوم د لویانو په فهرست کې تلپاتې کړ، په داسې حال کې چې د هغو خلکو نومونه یې لرې وغورځول چې پر ده یې په لومړي ځل د اته کلنۍ پر مهال د بینونو اورولو پر مهال د پلار په مخ کې خندلي وو او ټوکې یې ورپورې کړې وې.
- د خلکو خنداوې، ټوکې او د یوه خورا نږدې کس له لوري دردوونکې

خپېږه هغه څه وو چې د ده په داخل کې یې د مبارزې او نابغه توب سپرغۍ را تازه کړې.
نو گرانه وروره او خورې! ته هم د خپلو نږدې خپلوانو په څېږو مه خپه کېږه، بلکې د خپل خان ثابتولو لپاره یې تر ټولو لوی چلینج وبوله!

## ۱۲۳ ناکامه شه، خو په ښه توگه!

مخینې ته یې له کتو پرته، د روانپوهنې مشهور عالم ډاکټر زیگمونډ فروید په هغه علمي کنفرانس کې چې ده ته پکې د لومړي خل لپاره د خپلو روانپوهنیزو نظریاتو د وړاندې کولو اجازه ورکړل شوې وه؛ د خلکو شور او خوږ او د نیوکو او ردونو لړۍ پرې نه ښوده چې د خپلو افکارو له خپرولو یې را وگرځوي، بلکې خپل کتابتون ته را ستون شو او په روانپوهنه کې یې خپلو خپلو لیکنو ته دوام ورکړ. همدا لیکنې یې وروسته د روانپوهنې د علم تر ټولو مهمې سرچینې وبلل شوې، بلکې د ډېرو نورو روانپوهنیزو نظریانو د پرمختگ لامل هم شوې.

- رابرټ جوډارډ هغه ستور یوه و چې افکارو یې د هغه د ملگرو، خپلوانو او هم مسلکو تندې نیوکې او رټنې را وپارولې، خکه دوی ټول پر دې باور وو چې د ده د «جیټ انجن نظریه» چې د افکارو بنسټ یې و؛ د ځمکې په باندنۍ فضاء کې له هوا پرته حرکت نه شي کولای، خو نن ورځ ډېرې فضایي توغندي د همدې نظریې پر اساس فضاء ته توغول کېږي!
- د منځنۍ ښوونځي د باسکتبال لوبډلې، مایکل جورډن د هغه د ټیټې سویې له امله په خپلو صف کې ونه مانه، خو کله چې یې تر ناکامۍ وروسته د خپلې ناکامۍ ارزونه وکړه، نو په پای کې یې بریا ومونده.
- کله چې مشهور کامیډین جیري ساینفیلډ د خپلې طنزي

ټوټې وراندې کولو لپاره په لومړي ځل پر سټېج ودرېد، پښې يې سستې شوې، جام شو او د خبرو کولو توان يې له لاسه ورکړ، تر دې چې د خلکو د کړس کړس خنداوو او نيوکو په بدرګه له سټېج نه راکوز شو. په دويمه شپه ساينفيلډ د دويم ځل لپاره هڅه وکړه او دا ځل په داسې حال کې له سټېج نه راکوز شو چې خلکو په زوره زوره لاسونه ورته پړکول.

- کله چې مشهور نقاش پابلو پيکاسو پنځه نوي کلن شو، يوه زلمي خبريال ترې وپوښتل: ولې ان په دې عمر کې هم د ورځې شپږ ساعته د نقاشۍ تمرين کوې؟
  پيکاسو په ځواب کې وويل: ځکه زه داسې بولم چې د همدې تمرين په پايله کې خپل پرمختګ تضمينوم!
- مشهور روسي ناول ليکونکی ليو تولستوي په پوهنتون کې ناکامه شوی و او اداري ورته ويلي وو چې د زده کړو توان او تلوسه نه لري.
- ايا تر دې مخکې چا تر يرغل لاندې راوستې يې او ستا افکار يې رد کړي؟
- ايا ناکام يې بللی يې؟
- ايا سلبي او زړه تنګوونکي پيغامونه يې در استولي؟
- ايا پر دې ټولو دې غوږونه کاڼه کړي او پر خپله لاره دې سفر ته دوام ورکړی؟

که ټولو پوښتنو ته دې ځواب «هو» وي، نو پربړده چې مبارکي درکړم، ځکه په نږدې راتلونکې کې به د بريالیو خلکو له کاروان سره يو ځای شې. هغوی چې دا خبره په ښه توګه درک کوي چې پر الله تعالی او بيا پر خپل ځان باور درلودل د هرې لويې لاسته راوړنې ريښتينې دروازه ده.



## ۱۲۴ اوږده ساه واخله!

- پر ګلانو پوښل شوې لارې عظمت نه شي در ببښلی، نو که لویې ډېرې مخ ته درغلې، یوه اوږده ساه واخله او بیا پر دې فکر وکړه چې څنګه باید ترې تېر شې؟
- ډافنشي وايي: کله چې دې د یوه کار اراده وکړه، ترې مخکې باید یوه اوږده ساه واخلې.

## ۱۲۵ د عقاد حکمت!

وايي یوه لیکوال عباس عقاد ته شکایت وکړ چې ورځپاڼو د ده پر خلاف خوله خلاصه کړې. عقاد ورته وویل: ټولې هغه مقالې راته راوړه چې پر تا پکې نیوکې شوي. کله چې یې ورته راوړلې، عقاد وویل: یو د بل دپاسه یې کېږده او بیا پرې ودرېږه. هغه چې پرې ودرېد، عقاد ورته وویل: د دې نیوکو په اندازه د ځمکې له سطحې پورته شوې، که هغوی خپلې نیوکې لا نورې ډېرې کړي، ته به لا نور پورته شې!

## ۱۲۶ پیغام...

ای ګوښه شویه او ای هغه انسانه چې د یوه کس د رټنې او نیوکې له امله دې د ټولې دنیا غمونه او دردونه په سر اخیستي! وګوره چې لوباتو له دغه ډول پېښنو سره څه ډول چلند کاوه؟ دوی به له پېښنو سره داسې چلند کاوه لکه په لوبغالي کې یې چې لوبغاړي د فوټبال له توپ سره کوي، کله چې بل لوبغاړی له ده نه د توپ اخیستو لپاره برید کوي، نو په یوه شېبه کې یې وینو چې توپ ترې په خپلو پښو کې پټوي او خپله ټوله هڅه کوي چې له خانه سره یې وساتي. بیا دا هڅه کوي چې پر مقابل لوري د ګول وهلو لپاره پلان جوړ کړي چې دې ته ضد حمله وايي. هېڅکله چا ته اجازه مه ورکوه چې ودې دروي.

## ۱۲۷ د ختې دننه خزانه ده!

شاوخوا زر کاله مخکې ځینې چینایانو سره را غونډ شول او پرېکړه یې وکړه چې د سرو زرو یوه داسې مجسمه جوړه کړي چې وزن یې تر پنځو ټنو زیات وي. د دې مجسمې د جوړولو هدف دا و چې د چین د یوه مهم اثر په توګه ورته وکتل شي، تاریخ یې په اړه خبرې وکړي او له ټولې نړۍ ورته ګرځندویان او څېړونکي لیدو ته راشي. په پای کې یې عملاً وکړای شول چې همداسې یوه مجسمه جوړه کړي.

کله چې یې له جوړولو وزګار شول، د «برمود» په نوم یوه لښکر پر چین یرغل راوړ، نوموړی لښکر تر انتهایي حده په ظلم او شر جوړونې مشهور و. دوی چې به کله پر کوم ځای یرغل ور ووړ، هر څه ته به یې اور اچاوه او هېڅ شی به یې روغ نه پرېښود.

د چین کاهنان پر مجسمې ووېرېدل او پرېکړه یې وکړه چې په ټینګه خټه کې یې پټه کړي، ترڅو برمودیان یې ونه مومي. دوی همداسې وکړل، مجسمه یې په ختو کې پټه کړه او بیا هغه چې کاهنانو یې اټکل کړی و. برمودیانو یې پر کلي یرغل راوړ، هر څه یې له منځه یوړل او د کاهنانو په ګډون یې د کلي ټول اوسېدونکي ووژل. تر دې وروسته یې یوه لویه مجسمه ومونده، خو دوی ته یې کوم ارزښت نه درلود، ځکه یوازې له ختو جوړه شوې یوه مجسمه وه، نو ترې تېر شول.

ورځې او شپې همداسې تېرېدې او د سرو زرو مجسمه پر خپل ځای پاتې وه. تقریبا سل کاله وړاندې چینې چارواکو وپتیېله چې نوموړې مجسمه له خپله ځایه د دې هېواد پلازمېنې «پیکینګ» ته نقل کړي او حال کې چې په داخل کې یې له شنه ارزښته خبر نه وو!

د ختینې مجسمې د انتقال لپاره یې قوي او پرېمانه اوزار راوړل، دا خورا سخته تجربه وه، هوا ډېره سړه وه او پرېمانه باران هم ورېده. په مجسمه کې درز پیدا شو، لوی کاهن غږ کړل چې نور دې کار ودرول شي او

مجسمه دې تر بلې ورځې پر ځمکه پرېښودل شي ترڅو هوا معتدله او باران کرار شي، نو مجسمه یې همداسې پر ځمکه پرېښوده.
بوډا کاهن چې سخت هوښیار او پر حقایقو د پوهېدو ډېره تلوسه یې درلوده؛ یو ګروپ یې راوړ او رڼا یې د مجسمې چاود ته ونیوله. نو وېې لیدل چې د ګروپ رڼا بېرته انعکاس کوي، نو څټک او پانه یې را واخیستل او د چاود په لویولو یې پیل وکړ. د رڼا انعکاس ورو ورو زیاتېده، دې کار کاهن وهڅاوه چې خپلې هڅې ته دوام ورکړي. بیا یې له نورو کاهنانو مرسته وغوښته، نو هغوی ټولو له مجسمې نه د خټو په ماتولو او لرې کولو پیل وکړ. تر لس ساعته پرلپسې سخت کار وروسته هغه مهال ټول هک حیران پاتې شول کله چې یې خپلې مخې ته له سوچه سرو زرو جوړه شوې مجسمه ولیده. داسې یوه مجسمه چې بیه یې لا محدوده وه او دوی په خپل عصر کې د دې په څېر حیرانوونکې مجسمه نه وه لیدلې.
هو، دوی تر خټو لاندې د سرو زرو لویه مجسمه وموندله او په خورا خوښۍ یې د دې پېښې خبر خپور کړ. چینايي چارواکو وروسته نوموړې مجسمه په خورا تلوسې پلازمېنې «پیکین» ته انتقال کړه ترڅو د څېړونکو او ګرځندویانو د توجه مرکز وګرځي.
نوموړې مجسمه اوس د چین په پلازمېنې «پیکین» کې موجوده ده او دپاسه پرې دا چینايي وینا لیکل شوې: «د خټې په داخل کې خزانه ده!»

##  دمه!

بوهېږې، زمونږ او ستاسې د ډېرو په داخل کې دې ته ورته د سرو زرو خزانه شته، خو تر اوسه یې په موندلو نه یو توانېدلي، ځکه د «معمول» مغکنې حکم او پر خپلو وړتیاوو د نه اعتراف تر خټو لاندې کرارې پرته ده.

ښه نو دا څوک دي چې د ختو د پوښ ماتولو، د لا محدوده ورتیاوو رابرسېره کولو او د خپل داخلي رېښتیني ارزښت را سپړلو ته مو نه پرېږدي؟!

ګرانه لوستونکیه! پرېږده چې څو پوښتنې درنه وکړم، خو کله چې دې پوښتنې ولوستې، ژر ځواب مه راکوه، بلکې کتاب سمدستي بند کړه. سترګې دې پټې کړه او ژور فکر وکړه او هرې پوښتنې ته د خپل ځواب له مخې د هغه شخص ذهني تصویر جوړ کړه چې غواړې د الله تعالی په مرسته یې را منځ ته کړې. پوښتنې دا دي:

- ایا پوره باوري یې چې په داخل کې دې نا کشف شوې ورتیاوې شته؟
- ایا داسې اهداف هم لرې چې د بې پروایی تر ختو لاندې دې ښخ کړي او بې ګټې دې پرېښې؟
- ایا دا هیله لرې چې یوه ورځ په رېښتینې توګه بریالی شې؟
- ایا غواړې چې د ختې پوښ لرې کړې او په خپل داخل کې دفن شوې خزانه ووینې؟

که دې پوښتنو ته دې ځواب «هو» وي، نو همدا اوس پیل وکړه.
او که ځواب دې «نه» وي، نو بدبختانه چې تر اوسه دې خپل ارزښت نه دی پېژندلی!

## ۱۲۹ «ناممکن» را وپرځوه!

کله چې تنکي ځوان ګراهام بېل غږ لېږدوونکې آله (تلیفون) اختراع کړ او بیا وروسته یې د اختراع حقوق هم په خپل نوم کړل، د یوه تمویلوونکي شرکت په لټه کې شو چې اختراع ته یې بازار موندنه وکړي. بېل د خپل وخت تر ټولو لوی شرکت «ویسټرن یونین» ته ورغی او پر هغوی یې د زرو (۱۰۰۰) ډالرو په بدل کې د خپلې اختراع د ټولو حقونو د خرڅون وړاندیز وکړ، خو شرکت په ډېر ریشخند د هغه وړاندیز رد کړ.

بېل پرېکړه وکړه چې د «AT&T» په نوم خپل شرکت جوړ کړي، هغه شرکت چې اوس يې پانګه ميلياردونو ډالرو ته رسېږي.

- کله چې دې خلک هڅې او ځانګړتياوې نه ستايي، نو له ريسک «خطر» منلو پرته بله هېڅ لاره نه لري. هو، خطر ومنه، پر «ناممکن» يرغل وکړه، خو پام دې وي چې په شا نه شې او هغه څه له لاسه ور نه کړې چې ترلاسه کړي دې دي، ځکه ستا هڅې هېڅکله هغومره نه ستايل کېږي څومره چې يې ارزښت لري.
- دا خبره هم درسره په ياد لره، دا چې ته په خپله پر خپل ځان باور نه لرې، نو نور څنګه مجبوروې چې باور درباندې ولري؟!
- اوس نو دا ووايه چې د خپل ځان د ستايلو په اړه دې د ګراهام بېل له موقفه څه زده کړل کنه؟! هيله لرم!

## ۱۳۰ پورته وګوره!

د بادبان لرونکو کښتيو په زمانه کې يوه ځوان ماڼو په خپل ژوند کې په لومړي ځل د سمندر له وېروونکو څپو سره مبارزه پيل کړه. کښتۍ په شمالي اتلانتيک سمندر کې له تندو هواګانو سره مخ شوه، له دې سره ماڼو ته حکم وشو چې د بادبان او بيرغ د لکړې ترمنځ د کښتۍ سر ته پورته شي ترڅو په سمه او ارامه توګه د کښتۍ لورى وټاکي.

کله چې ځوان د بيرغ لکړې ته د ختو په هڅه کې شو، يوه تېروتنه يې وکړه او هغه دا چې لاندې يې وکتل او داسې يې احساس کړه چې نظر يې د کښتۍ پر شاوخوا تاوېږي را تاوېږي او څپې پر کښتۍ د اووښتو په حال کې دي. دا ورته وېروونکې تجربه وه، ځوان داسې احساس کړل چې ګواکې خپل توازن له لاسه ورکوي او نږدې ده چې راولوېږي. دا مهال يوه بل ماڼو چې تر ده ډېر پوه او د حوصلې خاوند و، له لاندې برې ور غږ کړل: زويه! پورته ګوره، زويه! پورته ګوره! ځوان ماڼو هم پورته

وکتل او خپل له لاسه ورکړی توازن یې بېرته ترلاسه کړ!

- دا ښکلې کیسه له خپل لنډوالي او ساده والي سره سره په زړه پورې پند را زده کوي او هغه دا چې: کله چې دې کارونه خراب شول، هیلې دې له منځه ولاړې او پروګرامونه دې له خاورو سره خاورې شول، نو حوصله مه تنګوه او لاندې مه ګوره، بلکې سر جګ کړه، پورته وګوره، ووایه «یا رب!»، مرسته ترې وغواړه، د روح دروازې دې رباني نور ته پرانېزه او پر دې پوه شه چې له هغه پرته دې بل هېڅوک له قیدونو نه شي خلاصولای او نه دې له نوي سره بېرته توازن برابرولای شي او په یوه قدسي حدیث کې بیان شوې د الله تعالی دا وینا په یاد لره:

«زه د خپل بنده د ګومان پر وړاندې یم، نو زما بنده چې څنګه غوښتي وي، همغسې ګومان دې رابانديې وکړي.»

- په لاندې کتلو خان مه مشغولوه، داسې چې د اور کنده او قید یې وبولې، بلکې کله هم چې دې کارونه خراب شول، پورته وګوره. څکه د تل لپاره لاندې کتل په لا شعوره توګه داسې احساس درکوي چې خان په دې کنده کې پروت وبولې!

## ۱۲۱ پر هیلو دې باور ولره!

یوه ورځ والټ ډیزني په داسې حال کې د خپلې ښځې خوا ته ورغی چې د یوه کوچني موږک رسم کړی کاریکاتور ورسره و، هغې ته یې وویل: د دې کوچني موږک له لارې به ډېره پانګه ترلاسه کړو!

ښځې یې سمدستي ورته وویل: هیله لرم چې کوم بل چا ته دې دا خبره نه وي کړې!

خو دا چې ډیزني پر خپلې بریا باور درلود، د خپلو هیلو په ترلاسه کولو پسې یې خپلو هڅو ته دوام ورکړ. هغه پر دې باور درلود چې کولای شي د «میکي ماوس» شخصیت او «ډیزني» ښار را منځ ته کړي.

خپلو هیلو ته د رسېدو په لار کې ډېزني له ډېرو خنډونو سره مخ شو او تر یوه ځل ډېر مفلس «دیوالیه» شو، خو د خپل پیاوړي باور له لارې یې وکولای شول چې بریا ترلاسه کړي. له همدې امله ده چې اوسمهال د «ډیزني» ښار یو داسې په زړه پورې فني شهکار بلل کېږي چې له ماشومانو سره سره یې د لویانو توجه هم جلب کړې ده.

نو ته هم د ده په څېر شه، همدا اوس پیل وکړه، په خپل داخل کې دفن شوې هیله وپلټه، دوړې ترې لرې کړه او پوره باور پرې ولره ترڅو د بریا پر دروازه ور ننوځې!

## ۱۳۲ د ښار ښوونځی!

د کوچني ښار ښوونځی به په یوه کوچني نغري کې د ډېرو سکرو په بلولو سره ګرمېده. یو کوچنی ماشوم به هر سهار تر خپل ښوونکي او ملګرو دمخه ښوونځي ته راته او اور به یې بلوه چې ښوونځی ګرم شي.

یو سهار چې ښوونکی او زده کوونکي ښوونځي ته را ورسېدل، ګوري چې اور یې اخیستی او ماشوم پکې دننه بند پاتې دی. ماشوم یې ژر تر ژره له ښوونځي را وویست، خو په هوښ کې نه و او داسې برېښېده چې مرګ ته ډېر نږدې دی. د بدن ښکتنی برخه یې سخته سوځېدلې وه، نو ژر یې نږدې روغتون ته یووړ. ماشوم د نیمه بېهوښۍ په حالت کې په کټ کې پروت و چې د ډاکټر غږ یې واورېد چې د ده مور ته یې ویل: هېڅ چاره نه شو کولای، زوی دې وبوله. همدا ورته ښه ده چې مړ شي، ځکه د بدن ښکتنۍ نیمه برخه یې پوره سوځېدلې.

خو ماشوم نه غوښتل چې مړ شي، بلکې ټینګار یې کاوه چې باید وژغورل شي. ډاکټر چې یې ټینګار ولید، له مجبوره یې خپله ټوله هڅه وکړه او په یوه طریقه یې ماشوم د مرګ له خطره وژغوره. کله چې د مرګ خطر له منځه ولاړ، د خپلې مور او ډاکټر خبرې واورېدې چې ورو ورو سره غږېدل، ډاکټر یې مور ته ویل: مرګ ورته ښه دی، اور یې د بدن

د ښکتنۍ برخې ټوله غوښه سوځولې، که دې ژوندۍ هم پاتې شي، ټول عمر به معذور وي او هېڅکله به ونه کړای شي چې پر خپلو پښو وګرځي.
خو ماشوم پرېکړه کړې وه چې باید د ټول عمر لپاره معذور پاتې نه شي او خامخا به پر خپلو پښو حرکت کوي، خو ستونزه دا وه چې د خپلې دې هیلې د ترسره کولو لپاره یې هېڅ په وس نه وو پوره، ځکه د بدن نیمه ښکتنۍ برخه یې په هېڅ توګه او د هېڅ خواک له لارې نه شوای خوځولای.
د ماشوم دوه نرۍ پښې موجودې وې، خو ژوند پکې نه و. په همدې حالت کې له روغتونه رخصت شو، مور به یې هره ورځ پښې ورته موښلې، خو ماشوم به هېڅ شی نه احساسول او نه به یې خوځولی شوای، خو پر خپلو پښو د ګرځېدو په اړه یې اراده تر مخکې لا ډېره پیاوړې وه. کله چې به پر بستر نه و، پر متحرکې څوکۍ به کېناسته.
په یوه لمرینه ورځ یې مور د کور چمن ته ویوست چې تازه هوا تنفس کړي، په دې ورځ د دې پر ځای چې پر متحرکې څوکۍ کېني، ځان یې پر ځمکه وغورځاوه او پر وښو ښوېده او پښې یې په ځان پسې کش کولې. تر هغې ښوېده چې د خپل باغ دېوال ته ورسېد او تر ډېرې خوارۍ وروسته وتوانېد چې پر دېوال پورته شي، ځکه هغه ځان پر دې قانع کړی و چې خامخا به پر خپلو پښو ګرځي.
له دې وروسته به یې هره ورځ همدا کار کاوه تر دې چې بیا ورته پر دېوال پورته کېدل ډېر اسانه شول، ځکه دې کوچنې ماشوم له دې پرته بله هېڅ هیله نه درلوده چې بېرته پر خپلو پښو وګرځېدای شي.
کوچنې ماشوم د مور له لورې د ورځنې موښلو، نوې ارادې، کلک عزم او تر هر څه مخکې، د لوی خدای په اراده یې وکولای شول چې پر خپلو پښو ودرېږي، بیا یې پر یوه شي د تکیې په مرسته ورو ورو قدمونه واخیستل، بیا یې پر شیانو له تکیې پرته قدمونه واخیستل او په پای کې یې وکولای شول چې ان منډې ووهي.

تر دې پرمختګ سمدستي وروسته په پوهنتون کې د ځغاستې د ټیم غړی شو، د طب پوهنځي ته داخل او بیا ترې فارغ شو.
هو، ډاکټر «ګلین ګنګهام» د خپلې کلکې ارادې او پرله پسې هڅو له لارې وکولای شول چې د نړۍ تر ټولو چټک ځغاستونکی شي، په داسې حال کې چې نوموړی هغه ماشوم و چې د ژوندي پاتې کېدو یا ان قدم اخیستو هیله یې نه وه.

## ۱۳۳ نصیحت

که ټولې نړۍ درته وویل چې دا کار «ناممکن» دی، نو د تل لپاره په یاد لره چې تر الله تعالی وروسته دا یوازې همدا ته یې چې کولای شې خپل مسیر وټاکې، نو پام چې نهیلی او بیا تر ټا د ناکامۍ شوي حکم ته تسلیم نه شې.

## ۱۳۴ ستا د لیدو لپاره مې یوه ټنګه هم نه ده ورکړې!

د ابراهام لنکولن د یوې ټاکنیزې غونډې پر مهال چې خپل خان او ګوند ته د خلکو را ماتولو په موخه یې جوړه کړې وه، د غونډې غړو به تالار ته د ننوتلو پر مهال یو یو ډالر جمع کاوه. د غونډې یوه ګډونوال غوښتل پر لنکولن کلکې نیوکې وکړي، همدا چې لنکولن خپلې خبرې پیل کړې، سړي چغې کړې: ایا پر ما لازمه ده چې د دې هېواد تر ټولو بد سړي د لیدو لپاره یو ډالر ورکړم؟!
لنکولن د سړي په دې خبره وارخطا نه شو، په داسې حال کې چې د غونډې ګډونوالو یوه او بل ته اریان دریان کتل، ځکه په دې خبره لنکولن، ګوند او ملګرو ته یې ښکاره سپکاوی شوی و، خو لنکولن سمدستي په خواب کې ورته وویل: ښاغلیه! تا په خپله خوښه زما د لیدو لپاره یو ډالر ورکړی، په داسې حال کې چې ما ستا د لیدو لپاره یوه ټنګه هم نه ده ورکړې!

- بریالي انسان پوهېږي چې څنګه خپل داخلي ثبات وساتي، خپلې ورتیاوې د بې ګټې بحث پر ځای مهمو امورو ته ذخیره کړي او هېڅکله د کم عقلانو او د سلبي روح لرونکو خاوندانو نظرونو ته پام ونه کړي.

## ۱۳۵ بوډۍ نیا ماسټري واخیسته!

(۹۴) کلنې استرالیایي نیا چې په (۱۲) کلنۍ کې یې ښوونځی پرېښی و، وکولای شول چې ماسټري واخلي. فیلیس ټېرنر د (۹۰) کلنۍ په عمر د استرالیا «ایډلیډ» پوهنتون ته داخله شوه او پنځه کاله وروسته یې له نوموړي پوهنتونه د طب په څانګه کې ماسټري واخیسته. ټېرنر په داسې حال کې چې پر امساء یې تکیه کړې وه، استرالیایي رسنیو ته وویل: تر پنځه کلنو زده کړو وروسته د ډېرې نېکمرغۍ احساس کوم، خو متأسفه هم یم، ځکه حرکت مې په امساء پورې تړل شوی.

پروفیسر ماسیج هنیبرګ چې د نوموړې بوډۍ د ماسټرۍ د رسالې د ارزونې مسؤولیت یې تر غاړې و، رسنیو ته وویل: د ټېرنر ورتیا او له زده کړو سره د هغې مینې ته حیران یم. ټېرنر له ذهني پلوه د بل هر زده کوونکي په څېر ده، له زده کړو سره یې شوق او حماسه د (۲۵) کلن کس په څېر ده. نوموړې فعال ذهن لري، دا یې عادت دی چې سهار پنځه بجې را ویښېږي، د یوه شي په اړه فکر کوي او بیا زنګ راوهي چې راته ووایي، نوموړې یې په اړه تحقیق کولو ته تلوسه لري!

- ښه نو د دې بوډۍ ارادې او بریا ته د رسېدو هیلې حیرانه کړې. سره له دې چې د شاوخوا خلکو به یې دې کار ته د تعجب په نظر کتل او ډېر عمر له امله یې د حرکت خواک هم په امساء پورې تړل شوی و؟!

پرېږده چې یوه پوښتنه درنه وکړم: دا چې ته توان، تانده ځواني او د ازاد حرکت ورتیا لرې، نو بیا څوک دي چې ستا او

بریا ترمنځ خنډ شي؟
فکر وکړه او ریښتیا ځواب راکړه، پوه به شې چې ستا او بریا ترمنځ هېڅ شی نه شي خنډ کېدای!

## ۱۳۶ د پیمخې غوږ!

له یوه فیلسوف نه وپوښتل شول: انسان ولې سختۍ تحمل کوي، سره له دې چې همېشه یې تر فشار لاندې شکایت کوي؟
فیلسوف وویل: ځکه سختۍ د پیمخې د سوري شوي غوږ له امله د رامنځ ته شوي درد په څېر دي چې بیا وروسته په زخمي شوي ځای کې قیمتي جواهر اچول کېږي!

## ۱۳۷ مخکې درومه، مه ودرېږه!

- له سست پرمختګه مه وېرېږه، بلکې ښايي چې په خپل ځای کې له همداسې ثابت پاتې کېدو نه ووېرېږې.
- کله چې دې له خپله هدفه سترګې واړولې، خنډونه به ووینې.
- د انسان مسیر د برخې یا تصادف خبره نه ده، بلکې د اختیار او خوښې خبره ده.
- ښايي قوي اراده وکړې چې هر څه به کوې او تر ټولو ښه به یې کوې.
- ریسک (خطر) ومنه، ژر ده چې بریالی شې.

## ۱۳۸ یوازې یو اینچ!

د یوه پوهنتون یوه نومورکي ښوونکي له یوې ښځې سره چې د اوربېدو ستونزه یې درلوده، واده کړی و. ده هیله درلوده چې خپلې ګرانې ښځې ته یوه داسې آله جوړه کړي چې په اسانۍ سره یې دا ستونزه حل شي،

د دې کار لپاره یې له خپلې اړتیا هر زیات ډالر پر هغې لګاوه او همیشه به په دې فکر کې و چې څنګه خپل ارمان ته رسېدای شي؟
تاریخ موږ ته وایي چې دا سړی په خپله دې هڅه کې ناکامه شو. خو هغه له دې ډېر لرې و چې ناکامه وبلل شي، ځکه ان الیګزانډر ګراهام بېل هم د ده ښځې ته د اورېدو د آلې په جوړولو کې ناکامه شوی و، خو بېل د یوې بلې نوې آلې په جوړولو کې چې میلیونونه خلکو ترې استفاده وکړه، ناکامه نه شو، هغه آله تلیفون و او دا ځکه چې هغه هېڅکله له مبارزې لاس وانخیست.
تر دې پېښې کلونه وړاندې، یوه الماني مخترع چې «فیلهلم ریس» نومېده د سیمي تار له لارې د غږ رسولو ابتکار وکړ. خو هغه مهال ناکامه شو او د نوموړې آلې د اختراع ویاړ یې له لاسه ووت چې له پرله پسې هڅو یې لاس واخیست. سره له دې چې بریا ته ډېر نږدې شوی و. که هغه یوازې د یوه اینچ په اندازه دوه برقي قطبونه خوځولي وای چې له یوه بل سره نږدې شي، نو تاریخي ویاړ به یې په نصیب شوی وای، خو «ریس» د همدې وړې هڅې نه کولو له امله په لوی لاس ځان د تاریخ له یاده ویوست.
دا ناکامۍ ته ورته هڅه دا زده کوي چې د هغه څه په اړه باید فکر وکړو چې د کېدو امکان یې شته. که «ریس» د ګراهام بېل په څېر خپلو هڅو ته پرله پسې دوام ورکړی وای او لاس یې نه وای ترې اخیستی، اوس به له تا پوښتنم، ایا ممکنه نه وه چې د ده نوم هم د هغه په څېر د تاریخ په پاڼو کې ثبت وای.
لمس کړي وای؟!
ګرانه لوستونکیه! د دې دوو علماوو موقفونه په خپله پرتله کړه او له دواړو قطبونو په تصادفي توګه یو بل خانه وپوښته: د دواړو ترمنځ څه توپیر دی؟
هو، دا پر بریا او پرله پسې هڅې ټینګار و، «ګراهام بیل» ناکامۍ ته تسلیم نه شو او خپلو هڅو ته یې دوام ورکړ، خو «فیلهلم ریس» له هڅې لاس واخیست، سره له دې چې بریا ته ښېخي نږدې و. له همدې امله د

تاریخ له یاده ووت او د بریا خوند یې ونه څکه، ځکه بریا ته هڅوونکې داخلي انګېزه یې کمزورې وه.

ایا پر "ویلهلم ریس" دې چې بریا ته یو اینج نږدې و؛ زړه وسوځېد؟!

اوس نو له ځانه وپوښته: ایا ته هم د هغه پر خطاء لاره درومې؟

زه پوره باور لرم چې داسې به نه کوې، ځکه د هغه کیسې دردولې یې!

نو هڅه وکړه، ځکه کېدای شي ته هم د بریا پر دروازه له ننوتو یوازې یو اینچ لرې اوسې!

## ۱۳۹ ناکامي دې ولمانځه!

برایان ټریسي په دې نظر دی چې ناکامي په ژوند کې یو طبیعي کار دی، لکه ساه اخیستل. هغه راته د خان په اړه وایي چې په زده کړو کې ناکامه شو، له دښتې د تېرېدو په لومړنیو درېیو هڅو کې ناکامه شو، په خپلو لومړنیو دندو کې ناکامه شو، د کاروبار په پیل کې ناکامه شو، کله چې یې اداري دنده پیل کړه، ډېرې تېروتنې ترې وشوې، خو له دې ټولو ناکامو هڅو یې زده کړه وکړه او د خپلو کتابونو، لیکچرونو او روزنیزو برنامو له لارې یې خپله ناکامي پر بریا بدله کړه.

برایان په دې نظر دی چې په ژوند کې هر بریالی انسان خو خو ځلې له ناکامۍ سره مخ کېږي، خو ریښتینی بریالی انسان هغه دی چې له خپلو ناکامیو زده کړې کولو ته دوام ورکوي، تر دې چې بریا یې په نصیب شي.

- کله چې را ولوېدې، داسې مه بوله چې زیان دې وکړ، بلکې موسکی شه، ځکه ته په پوره باور سره د بریا پر لور ګامونه اخلې او پر دې خبره پوه یې چې هره ناکامه هڅه یوه نوې تجربه ده چې له غلطې لارې دې ژغوري او سمې لارې ته دې لا نور نږدې کوي.

نو هڅه وکړه چې تر هرې ناکامۍ هڅې وروسته بېرته خپل توازن ترلاسه کړې.

## ۱۲۰ قهرجنه ښځه!

يوه ورځ «فاراډي» د خلکو د يوې لويې ډلې مخ ته پر ستيج ودرېد چې خپله نوې تجربه وړاندې کړي. دوه مِسي سيمان يې را واخيستل او له کالفانو ميټر نومې مقياس سره يې وصل کړل، بيا يې د مسو يوه مقناطيسي کړۍ ور نږدې کړه، نو د مقياس ستنه وخوځېده. د دې معنا دا وه چې د مقناطيس په قوت سره هم د برق جريان توليدېدای شو. کله چې يې مقناطيس لرې کړ، ستنه له چپې لوري بېرته خپل ځای ته راغله.

فاراډي تر دې تجربې وروسته خلکو ته وويل: ممکنه ده چې په دې طريقه د برق جريان توليد شي.

کله چې د فاراډي تجربه پای ته ورسېده، يوه ښځه چې کوچنی ماشوم يې په غېږ کې نيولی و، ور نږدې شوه او په غوسه يې ورته وويل: ايا همدا هغه تجربه وه چې موږ دې ورته را جمع کړي وو؟ دا تجربه دې څه په درد خوري؟ ايا دا ټول خلک دې د دې لپاره راغوښتي وو چې رېشخند پرې ووهي؟

فاراډي له دې ټولو تندو خبرو سره سره په خورا ادب ځواب ورکړ: اغلې! دا تجربه مې ستا د دې ماشوم په څېر ده چې په غېږ کې دې نيولی، اوسمهال امکانات په لاس کې نه لري چې وګرځي او منډې ووهي، خو څه موده وروسته دا کارونه کولای شي. زما دا تجربه هم همداسې وبوله، يوه ورځ به ثابته شي چې خورا ګټوره ده او کله چې ورته امکانات برابر شي، وده او پرمختګ به وکړي!

دلته وه چې ښځه د دې ځواب په اورېدو غلې شوه. موږ ټول ښه پوهېږو چې د «فاراډي» همدا کوچنی تجربه زموږ په اوسني عصر کې د برق د توليد هسته ثابته شوه.



## ۱۴۱ دمه

که د یوه کار په ترسره کولو کې دې ښه خواري وکړه او تمه دې درلوده چې د خلکو له لوري دې مناسبه مننه او ستاینه وشي یا لږ تر لږه لاسونه درته وپړکوي، خو ناڅاپه د هغوی له تندو نیوکو او سپکو خبرو سره مخ شې، نو ایا هغه مهال د را پرېوتو احساس کوې او خپله ماتې او ناکامي اعلانوې؟ او یا دا چې د «فارادې» په څېر به بیا هم پر خپل خان باور لرې؟!

د دې پوښتنې ځواب تا ته پرېږدم!

## ۱۴۲ یو میلیون ټکي!

«الیکس تیو» ښوونځی پای ته ورساوه او پوهنتون ته د ور داخلېدو لپاره یې خان تیاراوه. هغه یو انګریز ځوان و او په پلازمینه لندن کې اوسېده او دا چې دلته پر پوهنتوني زده کړو ډېره خرچه راتله، نو په فکرونو کې ډوب شو، تر دې چې یو نابغه فکر ذهن ته ورغی او له ده سره یې مرسته کوله چې پوهنتوني زده کړې پرې نه ږدي او خپلو هغو سختو اقتصادي شرایطو ته تسلیم نه شي چې پوهنتون ته له ننوتو یې محروماوه.

د فکر نچوړ یې دا و چې خپله ځانګړې یو مخیزه ویب پاڼه باید جوړه کړي چې د پکسل (Pixel) په حساب یو میلیون ټکي به پکې وي او هر ټکی به یوازې په یوه ډالر خرڅوي، خو دا چې یو ټکی په ویب پاڼه کې سم نه ښکارېده، نو تر ټولو لږه ساحه چې اخیستل یې ممکن وو، یو کوچنی ۱۰ په ۱۰ کې یو مستطیل شکل و چې (۱۰۰) ډالره قیمت یې درلود. الیکس پر خپله ویب پاڼه د اعلانونو له خپرولو دا هدف درلود چې پوهنتون ته په ورتلو کې ورسره مرسته وکړي.

الیکس تر دې وروسته خپلو ملګرو ته لیکونه واستول چې د ویبپاڼې خبرتیا یې تر خپلو ملګرو ورسوي او هغوی وهڅوي چې د ده په ویبپاڼه

کې خانونو ته څو تېکي واخلي. د (۲۰۰۵) میلادي په اگست میاشت کې هر څه تیار وو او الیکس عملاً په کار پیل وکړ، په لومړنیو درېیو ورځو کې یې د (۴۰۰) ډالرو په ارزښت (۴۰۰) پکسل ټکي وپلورل چې دا اندازه پیسې د یوه عادي انگرېز خوان لپاره کمې پیسې نه وې. تر دې دوه ورځې وروسته یې (۱۰۰) پکسله، بله ورځ (۴۰۰) پکسله او دېوه ورځې وروسته (۲۰۰) پکسله ټکي وپلورل او بیا یې پرېکړه وکړه چې خپل کار څه موده وځنډوي، خو دا چې محلي رسنیو یې د ویبپاڼې خبر خپور کړی و او دلته هلته پرې د خلکو ترمنځ بحث کېده، خکه نو راتلونکې ورځ یې (۲۵۰۰) او په بله ورځ یې (۱۹۰۰) پکسله ټکي وپلورل او په دې توگه یې ویبپاڼې پرمختگ وکړ.

الیکس په دوو اونیو کې د خپلې ویبپاڼې له لارې لس زره ډالر وگټل، یعنې د هغه څه یو فیصد چې ده په پام کې درلود. په درېیو اونیو کې یې د خپلو پوهنتوني زده کړو د درېیو کالو خرچه یعنې اووه دېرش زره ډالر گټلي وو.

مخکې تر دې الیکس عملاً پوهنتون ته داخل شي، (۱۱۰) زره پکسله ټکي یې پلورلي وو. الیکس له رسنیو سره د پرله پسې مرکو او د اخیستونکو د ډېرو غوښتنو له امله له ستونزې سره مخ شو، خکه نو هغه باید ټوله شپه په ویښه تېره کړې وای، ترڅو د اخیستونکو غوښتنې پوره کړي او پوښتنو ته یې ځواب ووایي. همدا مهال یې ویبپاڼې په ډېرې چټکۍ سره په نړۍ والو کچه د مشهورو ویبپاڼو په سر کې ځای ونیو.

الیکس تر خپل نابغه فکر پوره (۳۸) ورځې وروسته (۲۵۰) زره ډالر جمع کړي وو، همدا وه چې ټولو اروپايي او ترې وروسته امریکايي رسنیو د هغه د ویبپاڼې او فکر په اړه یې ولیکل. تر څلورو میاشتو وروسته یې (۹۰۰) زره ډالر جمع کړي وو او د نوي میلادي کال په پیل کې یې د ویبپاڼې د لیدونکو شمېر په ورځ کې یو میلیون کسانو ته رسېده چې په دې توگه یې ویبپاڼه د مشهورو نړۍ والو ویبپاڼو ترمنځ (۱۳۷) ځای

خپل کړ:
ته الیکس سره یوازې (۱۰۰۰) پکسله پاتې وو، څکه نو پر بریتانوي
(EBay) نومې ویب سایټ یې د لسو ورځو لپاره په لیلام خرڅ کړل. که
څه هم چې د نومړو پلورل شویو ټکو اصلي قیمت (۱۰۰۰) ډالره و، خو
په دوو ورځو کې یې د لیلام له لارې (۲۳) زره ډالره پرې ترلاسه کړل. په
بای کې یې ګټه (۳۸) زرو ډالرو ته ورسېده او په دې توګه د الیکس نوم
د میلیونرانو او مشهورو کسانو په فهرست کې شامل شو.

- د خپلو اهدافو ترلاسه کولو لپاره مبارزه کول موږ دې ته هڅوي چې د خپل شخصیت په ژورو کې هغه خزانې ومومو چې لا تر اوسه مو نه دي کشف کړي او زموږ د نفس هغه بریالی دېو په لاس راکوي چې پټ شوی او غلی ناست دی، ترڅو باور پرې ولرو او ازاد یې کړو!

ګرانه لوستونکیه! مبارزه دې د دې خبرې درک کولو ته هڅوي چې خپل خان لا ډېر وپېژنې او دا چې ته همدا اوس څومره لوی شخص یې؟!

## ۱۴۳ د عنترة ګوته!

د جاهلیت د مهال د مشهور پهلوان عنتره بن شداد په اړه راځي چې د خپلې قهرمانۍ او صبر او نه تسلیمېدو د صفاتو ترمنځ یې اړیکه رامنځ ته کړې وه. چا ترې په جنګ جګړو کې د ده د صبر او استقامت د لامل په اړه چې دی یې تل بریالی او د پهلوانۍ په میدان کې د لوی نوم څښتن کړی و، وپوښتل. ده په ځواب کې وویل: ګوته دې راکړه چې وېې چیچم او ته یې زما ګوته وچیچه، بیا وګوره چې له دې چې څوک چغې کړي، پر درد یې صبر وکړه!
هغه وویل: ښه ده، عنتره د هغه ګوته په خپلو غاښونو وچیچله، هغه سړي یوه شېبه وروسته د درد له امله چغې کړې، بیا عنتره خپله ګوته ورکړه او ورته وېې ویل: اوس ته زما ګوته وچیچه. سړي د عنتره ګوته په

خپلو غانښونو وچیچله، خو عنتره پرته له دې چې د درد له امله چغې کړي، پر درد صبر وکړ، تر دې چې سړی نهیلی شو او د عنتره ګونډه یې پرېښووده.

عنتره وخندل او ویې ویل: که لږ نور دې هم زما ګوته د خپلو غانښونو ترمنځ ساتلې وای، ستا په خبر به مې د درد له امله چغې کړې وې، خو ما صبر او استقامت وکړ، تر دې چې خپل هدف مې ترلاسه کړ!

- هېڅ شی په خپل سر نه را منځ ته کېږي او قهرمانان هم هېڅ په هېڅه د شهرت لوړو څوکو ته نه رسېږي، نو ته هم د ژوند د دردونو او سختیو له زغملو پرته د بریا تمه مه کوه. څکه لوی خلک د دردونو او سختیو تر زغملو وروسته د لوړو مرتبو څښتنان شوي.

## ۱۴۲ ارمان دې مه خرڅوه!

یوه کس غوښتل خپل کور وپلوري او ترې بل غوره کور ته انتقال شي. د خپل یوه ملګري خوا ته چې کاروباري سړی و او په بازار موندنه کې یې مهارت درلوده؛ ورغی او ترې ویې غوښتل چې د کور د خرڅون لپاره یې یو اعلان ولیکي.

ملګري چې یې د ده له کوره ښه خبر و، په اړه یې یوه اوږده ستاینه ولیکله: موقعیت یې ښکلی، ساحه یې پراخه، نقشه یې د انجینري له معیارونو سره برابره او په زړه پورې جوړه شوې. بیا یې د کور د باغچې لمبا حوض او نورو شیانو خورا ډېره ستاینه کړې وه. بیا یې لیکل شوی اعلان د کور څښتن ته واوراوه، دا چې په اعلان کې یې د ده د کور ډېره ستاینه کړې وه، ده هم ښه غوږ ورته نیولی و. اعلان چې پای ته ورسېد، خپل ملګري ته یې وویل: هیله کوم، بیا یې راته واوره!

ملګري چې یې بیا ورته اعلان واوراوه، ده چغې کړې: آه... دا خو ډېر ښکلی کور دی، ما ټول عمر د همداسې یوه کور د موندلو ارمان کاوه

خو یوه نه وم چې عملاً به همداسې یوه کور کې استوګن یم، تر دې چې لوس مې یې له تا نه ستاینه واورېده.
بیا یې وخندل او خپل ملګري ته یې وویل: هیله کوم چې دا اعلان خپور نه کړې، ځکه کور مې د خرڅ لپاره نه دی!

- موږ ډېر څه په واک کې لرو، خو د ارزښت احساس یې نه کوو، مګر هغه مهال چې د له لاسه ورکولو وېره یې راسره پیدا شي.
- په خپل داخل کې د هغو ارمانونو پلټنه وکړه چې هېر کړي دې دي یا هغه چې د ناکامۍ په شېبو کې دې ترې د ځان خلاصولو هڅه کړې. بیا هڅه وکړه، دا ځل یې نیمګړي مه پرېږده، بلکې په ارزښت ورته قایل شه او هېڅکله یې مه پلوره!

## ۱۲۵ شتمن؛ د یتیمانو په روزنتون کې!

«تام» ماشوم و چې پلار یې وفات شو، مور یې د ده او د ده د ورور د نفقې وس نه درلود، ځکه نو د مجبورۍ له مخې دواړه یې د یتیمانو په روزنتون کې داخل کړل.
سخت دریځو راهبو (ننو) هڅه وکړه چې د دین مینه یې په زړه کې وکري. بیا یې د دیني زده کړو لپاره خپل نوم ثبت کړ چې په راتلونکې کې راهب شي، خو دیني زده کړو ته د نه پاملرنې له امله له روزنتونه وشړل شو، بیا د ټکسي دربور شو ترڅو له دې لارې د خپلو پوهنتوني زده کړو خرچه برابره کړي. همداسې یې وکړل، له همدې لارې یې په پوهنتون کې دري میاشتې درس ووایه او په ازموینو کې به یې تر ټولو لوړې نمرې اخیستې، خو د زده کړو د دوام لپاره د پیسو د نشتوالي له امله مجبوره شو چې بیا پوهنتون پرېږدي. تر دې وروسته د امریکې له سمندري پوځونو سره یو ځای او د امتیاز په رتبه ترې فارغ شو.
په پوځ کې د پاتې کېدو پر مهال چې یې د تنخوا کومې پیسې ترلاسه کړې وې، په یوه ناکامه پروژه کې ترې له لاسه ووتې. بیا د ورځپاڼو او

مجلو د وېشلو د مسوول په توګه وټاکل شو، په خپله به یې په نیویارک ښار کې کور په کور ورځپاڼې او مجلې تر خلکو رسولې.
بیا یې د ورځپاڼو او مجلو د پلورلو لپاره یو وړوکی دوکان پرانیست. په دې موده کې دوه ځلې پوهنتون ته داخل شو، خو دواړه ځلې د بېوزلۍ له امله درې اونۍ وروسته ترې پاتې شو.
یوه ورځ یې ورور «جیمز» د پیزا د یوه دوکان د خرڅون په اړه چې «دومینکیز» نومېده؛ ده ته خبر ورکړ. «جیمز» د دوکان د اخیستو په اړه ډېره تلوسه درلوده، خو نه یې خوښېده چې دا کار په یوازې خان وکړي، له همدې امله یې خپل ورور «تام» هم ورسره شریک کړ.
دواړو ورونو پرېکړه وکړه چې (۵۰۰) ډالر خپلې او (۹۰۰) ډالر پور کړي او دوکان پرې راونیسي. «تام» په یوه پاو وخت کې د پیزا د تیارولو چل زده کړ او وروسته د دوکان څښتن ولاړ. دواړو ورونو د دوکان د چلولو لپاره هېڅ تجربه نه درلوده، دواړو وپتېیله چې تر نیمې شپې به «تام» او تر سهاره به «جیمز» کار کوي، خو دا چې «جیمز» به سهار وختي پوستونه رسول، ځکه یې نو دا وړاندیز رد کړ. د دوکان تر پرانیستو اته میاشتې وروسته «جیمز» وپتېیله چې له دې کاره لاس واخلي، «تام» مجبوره شو هغه شریک موټر ده ته وسپاري چې دواړو به خلکو ته د پیزا رسولو لپاره کاراوه.
لومړنی کال ډېر سخت تېر شو، «تام» یکې کومه پامور ګټه ونه کړه تر دې چې پر ده اووښتو حسابونو په ورکولو کې یې هم خنډ وکړ. خو تر دې وروسته یې د کاروبار ګټه زیاته شوه او په همغه ښار کې یې دوه نور دوکانونه هم پرانیستل.
«تام» دا اټکل هم نه شوای کولای چې پر درې ځانګو به یې د خلکو دومره ګڼه ګوڼه جوړه شي، هرې ځانګې به یې په اونۍ کې (۳۰۰۰) پیزاوې پلورلې چې بیا وروسته (۵۰۰۰) ته لوړې شوې.
«تام» به د خپل کاروبار اړوند ورې او لویې چارې ته ډېره زیاته پاملرنه کوله، له همدې امله یې دوه رانده کسان د دې لپاره وګومارل چې د

خپلې پیزا د معیار په اړه د ښار د خلکو نظر معلوم کړي او د خپلو کار کوونکو زړونه یې ترلاسه کړل چې بیا به یې د ښه نه ښه کیفیت لرونکې پیزا په تیارولو کې له ده سره مرسته کوله او له دې سره هم مهاله به یې پانګه هم کمه مصرفېده.

«ټام» په نظر کې درلوده چې مشتریانو ته یې خپله پیزا د هغوی تر کورونو ورسوي، د همدې هدف لپاره یې په ډیټرویټ ښار کې له یوه صراف سره وکتل او خپل نظر یې ورته ووایه، خو صراف یې نظر ډېر سحطي او ساده وباله. ځکه «ټام» باید تر هر څه مخکې په خپل کار کې ډېر مسلکي وای، د خپلو اداري کارونو لپاره یې باید ډېر شمېر اسناد لرونکي کسان ګومارلي وای. د ډېر شمېر حسابونو لپاره یې باید کمپیوټري سیستم فعاله کړی وای او تر ټولو مهمه دا چې د خپل کاروبار وده او پرمختګ یې همداسې ثابت ساتلی وای.

«ټام» د نوموړي صراف په خبرو عمل وکړ. په لسو کلونو کې یې د څانګو شمېر له (۱۲) نه (۴۴) ته پورته شو چې بیا ورو سته د «ډومینوز پیزا» څانګې په ټوله نړۍ کې پرانیستل شوې او په دې توګه یتیم «ټام» په یوه شتمن خوان بدل شو.

- ایا د «ټام» کیسې کوم الهام او ارمان در وبانښه؟! زه همداسې احساسوم!

## ۱۴۶ توپ؛ همېشه وهه!

ایا پوهېږئ چې د بېسبال د لوبې تر ټولو ښه وهونکی همغه لوبغاړی دی چې د توپ وهنې په برخه کې یې نوم د ډېرو کلونو لپاره د تر ټولو ډېر ناکامه شوی کس په توګه ثبت شوی و؟!

افسانوي لوبغاړی «بیب راټ»، د بېسبال په تاریخ کې د توپ وهنې په برخه کې تر بل هر لوبغاړي ډېر ناکامه شوی تر دې چې ټول یخواني ریکارډونه یې مات کړل، خو په زړه پورې خبره دا ده چې نوموړی له

خپلو هڅو لاس وانه خیست، ځکه لاس اخیستو ورته د ماتې معنا درلوده، بلکې توپ وهنې ته یې دوام ورکړ، تر دې چې د نوموړې لوبې د یوه بریالي افسانوي لوبغاړي په توګه وپېژندل شو.

- کله چې دې ماتې وخوړه، مه ودرېږه، بلکې هڅو ته دې پرله پسې دوام ورکړه تر دې چې د بریا له زیري سره مخ شې.
- که زده کوونکی یې او په خپلو زده کړو کې پاتې راغلې، نو بیا ځلې هڅه وکړه، حتماً به بریالی شې.
- که سوداګر یې او په کاروبار کې دې تاوان وکړ، نو له نوي سره هڅه پیل کړه، بریا به دې په برخه شي.
- که لوی ارمانونه او هیلې لرې، نو لاس ترې مه اخله، ترڅو بریالی شې. تر ټولو مهمه دا ده چې ماتې ته تسلیم نه شې.

## ۱۴۷ له ناکامۍ وېرېږې؟!

ایا ته له هغو کسانو یې چې له ناکامۍ وېرېږي او په لومه کې یې له پرېوتو رېږدي؟!

راځه دا ارزښتناک نصیحتونه ولوله:

### ۱) د «ناکامي» ټکي له تکرارولو ډډه وکړه:

د چارلز ګارفیلډ په «د وياړونو څښتنان» نومې کتاب کې راغلي: بریالي خلک ډېر کم د «ناکامي» بدې معناوې لرونکی ټکی کاروي. دا ټکی کارول سړی پر بندو لارو برابروي. ځکه نو دوی د دې ټکي پر ځای نور ټکي کاروي.

د پنځوسمو کلونو په نیمایي کې یوه سوداګر چې «ویکتور کیام» نومېده او د «رمنګټن» په نوم ویښتانو پرې کوونکې آلې مخترع هم و، د یوه ناپېژندل شوي سوداګریز توکي د نماینده ګۍ ترلاسه کولو فرصت له لاسه ورکړ. دا توکی ویلکرو (Velcro) نومېده چې له دوو یو له بل سره پیوستو ټوټو نه جوړه شوې وه او د اړتیا پر مهال به یې

له بله بېلیده او په ځانګړې توګه په جامو او بوټانو کې به د ټکمو او تسمو پر ځای د بند په توګه کارېده.
کیام په خپل کتاب «د بریا لپاره ژوند وکړه» کې لیکي: دا زما حق و چې د دې فرصت له لاسه وتلو له امله راپارېدلی او په غوسه شوی وای، خو زه هرې ناکامې تجربې ته د لارې د یوه مشال په سترګه ګورم. په هر حال، که مې له دې تجربې زده کړه نه وای کړې، «رمنګټن» به نه وای اختراع شوای او نه به چا اخیستلای.

## ۲) سختو حالاتو ته په شخصي زاویې مه ګوره او ځان د ناکامانو له ډلې مه شمېره:

کارل هیاټ وایي: «هغه ژبه چې ته یې د خپل ځان په اړه کاروې، بنایي په فعلي حقیقت بدل شي.»
کارل په دې تېروتنه کې له پرېوتو خبرداری ورکوي او زیاتوي: «که د ځان په اړه دې په تکراري ډول داسې وویل چې بې عمله خرخوونکی یې، نو دا انګېرنه دې له کاره لاس اخیستونکو خلکو ډلې ته ور تېل وهي. زموږ په ټولنه کې دا جمله د ناکامۍ په معنا ده او امکانات دې هم را کموي.»
کارل زیاتوي: «غوره دا ده چې ځان ته د داسې یوه انسان په سترګه وګورې چې مخې ته یې پرانیستې ټاکنې پرتې وي، په ټاکنو کې باید د هغو ځانګړو زده کړو تعقیبول هم شامل وي چې د نویو مهارتونو ترلاسه کولو یا په زړه ورتوب سره د عمل له یوه ډګره بل ته د اووښتو لپاره دي.»

## ۳) مه تسلیمېږه!

څو کاله مخکې، د «جان رالي» ساختماني شرکت له درونده مالي زیان سره مخ شو. جان دا مهال پنځه ویشت کلن و، خپل کور یې ګرو کړ، بېرته ستنوونکی پور یې ترلاسه کړ چې په دې توګه خپل دیوالیه کېدل اعلان کړي. بیا یې د ودانیو جوړولو کار پیل کړ او

همدا مهال يې پرېکړه وکړه چې د مديريت علم هم زده کړي. تر دې اووه کاله وروسته يې حالت ښه او د تېر په څېر شو او وروسته تر دې چې د مصارفو او چارو د کنټرول په فن پوه شو، خپل ځانګړی شرکت يې جوړ کړ.

جان د کور جوړونې کارونو ته پراختيا ورکړه او له دې سره يو ځای يې په پوهنتون کې د مديريت زده کړې پيل کړې، درې کاله وروسته يې شرکت په امريکا کې د تر ټولو ژر وده کوونکو شرکتونو په لست کې راغی.

جان وايي: «زه غرور نه خوښوم، بلکې تل د خپلو کارونو د لا ښه والي هڅه کوم.»

لرې نه ده چې د جان دا دريخ چې له ناکامۍ يې رنګ اخيستی، په راتلونکو څو کلونو کې هغه د بريا لوړو څوکو ته ورسوي.

ګرانه لوستونکيه! ستا په وس هم پوره ده چې د هغه تګلاره خپله کړې او بريالی شې!

## ۱۴۸ لويانو د ناکامۍ په اړه ويلي!

- ناکامي يوازې کمزوری نفس له منځه وړلی شي، خو پياوړی نفس له ناکامۍ نه د بيا بريالي کېدو د يوې وسيلې په توګه کار اخلي.
- زه د الله تعالی ستاينه ادا کوم چې په ټولو ابتکاراتو کې زما د برياوو لامل زما ناکامي وه! (همفري ډافيډ)
- ناکامي يوازينی شی دی چې انسان يې له هر ډول هڅې پرته ترلاسه کولای شي! (نامعلوم)
- د بريا په قواعدو نه پوهېږم، خو د ناکامۍ تر ټولو مهمه قاعده دا ده چې هر انسان له خانه خوښ وساتې! (انيس منصور)
- ناکامېدل خورا ترخه دي، خو تر هغې هم ترخه دا دي چې د بريا هڅه ونه کړې! (جوفروا)

- بریا عذر ته اړتیا نه لري او ناکامي هیڅ توجیهات نه پرېږدي. (ناپلیون هیل)
- ښایي یو کس بیا بیا په خپل کار کې ناکامه شي، خو باید تر هغې نهیلی ونه بلل شي ترڅو چې یې له ځان پرته د بل چا ملامتول نه وي پیل کړي. (برنارډ شاو)
- که غواړې چې په خپل ژوند کې بریالی اوسې، نو په کار ده چې د یوه فاتح په څېر وګورې او کار، فکر او خبرې وکړې، نه د هغه چا په څېر چې له ماتې وېرېږي. (مارډن)
- ډېر فرصتونه په خپله زموږ خوا ته راځي، خو موږ ورته پاملرنه نه کوو. (انطوان تشیکوف)
- هیڅ انسان له ماتې سره نه مخ کېږي، مګر هغه مهال چې په خپله ورته ځان تیار کړي. (جوزیف ډانلیز)
- خپل مسیر مشخص کول ټول هغه څه دي چې ته ورته رسېدو ته اړتیا لرې. (کارل فریډریک)
- کېنه، روان شه یا ځمله، هر څه وکړه، خو پام چې زړه نازړه توب ونه کړې. (تشالزاتش کیلستاد)
- ښایي هر سړی پر دې خبره فکر وکړي چې هره ناکامي کېدای شي چې د بل غوره شي ترلاسه کولو پر لور یو ګام وي. (الکولونیل هارلاند ساندورز)
- پر بخت باور مه کوه، بلکې د امورو د اداري پر خپل اسلوب باور وکړه. (بیلیلیس سایرس)
- تر ټولو سخت دردونه؛ سړي را منځ ته کوي. (ریچارډ نیکسن)
- له ناکامۍ خوند واخله، خو هڅه وکړه چې بیا خلې ناکامه نه شې. (مارډن)
- بریا له یوې ناکامۍ نه بلې ته د انتقال وړتیا ده، پرته له دې چې خپله تلوسه له لاسه ورکړې. (چرچل)
- تر ټولو لویه تېروتنه چې انسان یې مرتکب کېږي؛ دا ده چې په

تېروتنه کې له اخته کېدو وېرېږي. (البرټ هوبارډ)

- هغه ژوند؛ ژوند نه دی چې چیلنجونه (ننګونې) ونه لري. (سقراط)

## ۱۴۹ یو سترګی ښکاري!

- د امریکې پخوانی ولسمشر «تیوډور روزولټ» خورا پیاوړی ښه ویشتونکی او په خپل وخت کې تر ټولو مشهور ښکاري و، خو دا کارونه به یې په یوه سترګه کول، ځکه یوه سترګه یې ړنده وه.
- کله چې ابن خلدون خپله کورنۍ له لاسه ورکړه، په ټولنپوهنه کې یې تر ټولو لوی کتاب ولیکه.
- مشهور روسي ادیب او د «جګړې او سولې» کتاب لیکوال تولستوی د ښوونځي پر مهال یو ناکامه زده کوونکی او ښوونکي یې ترې نهیلي شوي وو، خو وروسته د روسي ادب سرلاری شو.
- پر خپل ځان باور پیدا کول د بریا ترلاسه کولو او د ناکامۍ د ځنځیرونو ماتولو تر ټولو اسانه لاره ده، نو پر خپل ځان باور ولره، ځکه ته چې ځان ته په کومه سترګه ګورې، پوه شه چې خلک هم په همغه سترګه درګوري.

## ۱۵۰ مه تسلیمېږئ!

کله چې ونسټن چرچل د دویم خل لپاره د بریتانیې د لومړي وزیر په توګه خپله څوکۍ پرېښوده، په اکسفورډ پوهنتون کې د فارغېدونکو زده کوونکو غونډې ته د وینا لپاره وبلل شو. ونسټن چرچل به د خپل عادت له مخې په هر ځای کې د رسمیاتو په بهه په تر ټولو لوړه څوکۍ کېناسته، خولۍ به یې پر سر وه او پر خپلې امساء به یې تکیه کړې وه. د غونډې د مشر تر اورېدو مقدماتي خبرو وروسته چرچل ته د وینا بلنه ورکړل شوه، چرچل ستېج ته وخوت او د مایکروفون شاته ودرېد، د څو ثانیو لپاره چوپ ولاړ و او خلکو ته یې کتل، بیا یې په خپله ځانګړې

چرچلي طريقې سره پوره دېرش ثانيې خلکو ته وکتل او بيا يې وويل:
،،هېڅکله مه تسليمېږئ، هېڅکله، هېڅکله!،،
بيا يې د دويم خل لپاره يوه اوږده دمه وکړه او دا ځل يې په پوره فصاحت
او تاکيد سره وويل: ،هېڅکله مه تسليمېږئ، هېڅکله، هېڅکله!،
تر دې وروسته يې د څو ثانيو لپاره خلکو ته کتل او بيا کېناست.
هو، په رېښتيا چې دا د تاريخ تر ټولو لنډه وينا او هغه ښکاره ځانګړنه
وه چې تاريخ د ونستن چرچل په نوم ثبت کړه!

## ۱۵۱ ته يوازې نه يې!

- وليم جيمز وايي: ،ايمان يو له هغو ځواکونو څخه دی چې انسان يې له امله ژوندي پاتې کېږي او پوره نشتوالی يې د له منځه تللو په معنا دی. که په دې روحاني ځواک سمبال نه وای او لمانځه ته يې رجوع نه وای کړې. ښايي د بودا ستر هندي پيرو مهاتما ګاندي له منځه تللی وای. ګاندي په خپله دا خبره کوي، وايي: که لمونځ نه وای، ډېر پخوا به لېونی شوی وم.،
- د ،انسان، دا مجهول، کتاب ليکوال او د نوبل جايزې ګټونکی ،ډاکټر اليکس کارل، وايي: ،لمونځ هغه تر ټولو پياوړی ځواک دی چې انسان يې توليدولای شي، دا د ځمکې د جاذبې په څېر رېښتينی ځواک دی. د يوه ډاکټر په توګه مې ډېر داسې ناروغان ليدلي چې درملو څه ګټه نه ده ور رسولې. خو په پرله پسې لمونځونو سره له خپلو ناروغيو خلاص شوي. نو لمونځ د شعاع په څېر د ځواک سرچينه، رڼا کوونکې او نفس تازه کوونکې ده.،
- ايډميرال ،ريچارډ بيرډ، په خپل کتاب ،يواځينی، کې خپله کيسه داسې ليکي: په (۱۹۳۴) ميلادي کال کې مې د روز باريير په وادۍ کې د جنوبي منجمد بحر تر يخچالونو لاندې پنځه مياشتې تېرې کړې. په دې سيمه کې يوازينی ژوندی مخلوق وم، يخ واورين بادونه

يې زده کړه!

به مې پر سمڅه تېرېدل او د حرارت درجه تر صفر لاندې منفي دوه اتيا درجو ته رسېده. تر ټولو حيرانوونکې خبره راته دا وه چې زه به په هغو کاربن ډای اکسايډ ګاز سره بې هوښه کېدم چې تر لاندې به مې راواته.

ښه نو په دې حالت کې به بېيړۍ څه کړي وای؟! د امبولانس تر ټولو نږدې مرکز ته شاوخوا (۱۲۳) ميله لاره وه. هغه يې وکړه چې د ګاز د راوتو مخه ونيسي، خو ګاز به بيا هم همداسې راوتل. د بېيړۍ ستونزه يوازې همدا نه وه، بلکې نږدې وه چې د يخنۍ له امله مړ شي او کله کله به يې وېره دومره ډېره شوه چې له امله به يې له خپله ځايه نه شو پورته کېدای.

يوه شپه سختې وېرې واخيست، داسې يې وانګېرله چې ښايي تر سبا پورې ژوندی پاتې نه شي، پر خپل مرګ يې پوره يقين راغی او دا چې جسد به يې د تل لپاره تر يخچالونو لاندې پټ شي. ښه نو څه شي يې ژوند وژغوره؟!

په داسې حال کې چې د سختې نهيلۍ په حالت کې و، په ژوند کې يې خپله فلسفه ثبت کړه او ويې ليکل: «بشري جنس په دې نړۍ کې يوازې نه دی.» بيا يې پورته وکتل، ستورو، اسمان او د سيارو د نظام دقت ته او دا چې د لمر شعاعو به څنګه د جنوبي قطب ډېرې ژورې برخې روښانولې؛ په فکر کې ډوب شو، بيا يې وليکل: «زه يوازې نه يم.»

دا احساس او باور چې هغه يوازې نه دی، که څه هم چې د نړۍ په خورا لرې پرته سيمه کې تر يخچالونو لاندې پروت و؛ هغه څواک و چې ريچارډ بېيرډ يې وژغوره او په دې توګه يې درک کړه چې په داخل کې يې د ځواک سرچينې څنګه راخوتېږي، څنګه ګټه بايد ترې واخلي او په څه توګه د دې کون ستر خالق ته پناه يوسي.

- تر دوی څو پېړۍ مخکې مو خوږ پېغمبر صلی الله عليه وسلم دا حقيقت درک کړی و، هغه مهال چې بلال رضي الله عنه ته يې

وويل:
﴿أَرِحْنَا بِهَا يَا بِلَالُ﴾
«بلاله! په لمانځه سره مو سوکاله کړه.»
نو ته هم د خپل مولا مخې ته پر لمانځه ودرېږه او روح دې د ایجابي ایمان په خواک سره پیاوړی کړه، په دې سره به دې په روح کې مبشت شوی د نهیلۍ او ماتې احساس کډه وکړي. څوک چې له خپل رب سره پیاوړې اړیکې ولري، له هر خنډ او ناکامۍ نه په بریا سره تېرېږي.

## ۱۵۲ ... رسم کړه!

اوګسټ رینوار مشهور فرانسوی رسام او د «امپریشنسټ» فکري مکتب له ملاتړو څخه و، په «لوور» میوزیم کې یې د نقاشۍ ښکلي لوحې اېښودل شوي او څینې نورې نقاشۍ یې په ایټالیا، اسپانیا او امریکا کې ساتل شوي.
په سخت روماتیزم اخته شو، د امساء په مرسته به ګرځېده، په خپلو ګوتو یې هېڅ شی نه شو نیولی. له همدې امله به یې د رسامۍ برنګه له خپلو ګوتو سره نښلوله او په دې توګه به یې حیرانوونکې او ښکلې لوحې جوړولې.

- ګرانه لوستونکیه! ته هم کولای شې چې د ژوند برنګه په خپلو ګوتو کې ونیسې او زړه راښکونکې منظرې پرې رسم کړې، د خپلې هغې بریا نقاشي پرې وکړې چې ته یې وړ یې، نو له همدا اوسه د خپلې لوحې په رسمولو پیل وکړه، ان که د ارادې په څنځیرونو او د ټینګار په مزو یې تړلو ته هم مجبوره شوې!



## ۱۵۳ «ناشوا» نومې اس

«ناشوا» نومې حیرانوونکي اس وکولای شول چې په څو دقیقو کې په نړۍ کې د اسونو تر ټولو لویه او پیاوړې څغاسته وګټي. دا کومه تصادفي خبره نه وه، بلکې خاوند یې پرې تر څغاستې وړاندې سلګونه ساعته تمرین، هڅه او سخت کار کړی و، څکه نو یو میلیون ډالري جایزه یې وګټله او د دویم مقام ګټونکي اس خاوند ته پنځوس زره ډالر ورکړل شول، په داسې حال کې چې د دواړو اسونو ترمنځ واټن یوازې یو اینچ و!

د «ناشوا» نومې اس قیمت له دوو میلیونو ډالرو پورته دی، په دومره پیسو دوه سوه نور اسونه چې د هر یوه قیمت (۱۰۰۰۰) ډالره وي اخیستل کېدای شي، خو پوښتنه دا ده چې څه شي د دې اس قیمت دومره پورته کړی؟! ایا د دوو سوو اسونو د چټکتیا په اندازه منډې وهي؟!
طبیعي خبره ده چې نه، د (۵۰) اسونو چټکتیا هم نه لري، ان دا چې د دوو اسونو په چټکتیا هم نه، خو توپیر یوازې د روزونکي له لوري په پرله پسې هڅو او سخت منظم کار کې دی!
په ژوند کې لوړتیا او بریا په تلپاتې هڅو او پرله پسې حرکت پورې اړه لري او همدا کوچني توپیرونه دي چې په ژوند کې لوی توپیر را منځ ته کوي!

## ۱۵۴ دا هڅه بده نه ده!

هغه په سمندري خواکونو کې و، د زرګونو معمول خطبو او ویناوو لیکل یې پر غاړه وو، خو کله چې یې د خدمت موده پوره شوه، ویې نه شوای کولای چې یو بریالی لیکوال شي. پرله پسې اته کاله یې مختلفو مجلو ته مقالې او کیسې ولیکلې، خو یوه روپۍ ګټه یې هم ورته ونه کړه، څکه هغوی ته چې به یې څه استول، ردېدل به، خو دې بیا هم زړه مانی نه

شو.
یو خل ورته د یوې مجلې ایډیټر د ده د هڅونې او زړور کېدا په نیت په یوه لیک کې ولیکل: «دا هڅه بده نه ده!» دې جملې پر څوان لیکوال ډېر اغېز وکړ، اوښکې یې ورته روانې شوې او یوه نوې هیله یې ور وبښله.
دی د هغو خلکو له ډلې نه و چې ژر تسلیمېږي، په پای کې یې تر ډېرو کلونو وروسته داسې یو ناول ولیکه چې په ټوله نړۍ کې یې ژور اغېز پرېښود او نوم یې ورته «ریښې» کېښود.
هو، تر کلونو کړېدنې او سترې کوونکي کار وروسته «الیکس هالي» د خپلو هڅو مېوه ترلاسه کړه او د شلمې پېړۍ د اوبایمو کلونو تر ټولو بريالی او ژور اغېز لرونکی لیکوال شو.

- پرله پسې هڅه کوونکی شه، په هیلو سمبال شه، د خپلو ارمانونو ترلاسه کولو په موخه سترړیا وګاله، څکه پرله پسې هڅه، په هیلو سمبالېدل او سترړیا ګالل که څه هم چې ډېرو ته ستر شیان نه ښکاري، خو په حقیقت کې هغه اړین مقوِّمات (څواکمنوونکي) دي چې له عادي حالته دې د لوړتیا پر لور بیایي او خپلو ارمانونو ته دې رسوي.

## ۱۵۵ څغاسته پای ته نه ده رسېدلې!

د طلایي ویښتانو خاونده امریکایي نجلۍ «ایمي مولیز» شله نړۍ ته راغله او هغه مهال چې یو کلنه وه، دواړه پښې یې قطع شوې.
خو دې لویې معذورتیا «ایمي» له دې را ونه ګرځوله چې له خپلو هیلو او ارمانونو لاس واخلي، بلکې ویې کړای شول چې یو په بل پسې خپلو هیلو ارمانونو ته ورسېږي. د امریکې له دفاع وزارته یې په پوهنتون کې د بهرنیو اړیکو په څانګه کې د زده کړو پای ته رسولو ضمانت ترلاسه کړ، خو هغې یوازې پر همدې بسنه ونه کړه، بلکې غوښتل یې چې منډې ووهي، سره له دې چې پښې یې پرې شوې وې!

دي نجلۍ چې په جارج ټاؤن پوهنتون کې یې زده کړې کولې؛ بدني معذورۍ یې د پرمختیا مخه ونه شوای نیولای، ځکه هغې پر دې مقوله باور درلود چې وایي: «معذورتیا په فکر کې وي، نه په بدن کې.»
«ایمي» موده وروسته د ځانګړو مصنوعي پښو خاونده شوه او بیا وروسته یې د سلو، دوه سوو مترو او اوږد واټن ځغاستې په مسابقو کې نړۍ وال ریکارډ جوړ کړ. د اوږد واټن ځغاستې په سیالۍ کې یې د خپلو مصنوعي پښو په مرسته (۳) متره او (۱۴) سانتي متره ټوپ وواهه او همدارنګه یې په اتلانتیک کې د معیوبینو په اولمپیک کې برخه واخیسته.
ایمي په (TED) کنفرانس کې خپله یوه کیسه وکړه، ویې ویل: د سلو مترو ځغاستې په یوه سیالۍ کې مې ګډون کړی و، نوې مصنوعي پښې مې اغوستې وې، خو نه پوهېدم چې تر کومه د منډې او سختې خولې توان لري. همدا چې (۸۵) متره واټن مې وواهه، د شاوخوا (۵۰۰۰) نندارچیانو پر وړاندې مې مصنوعي پښې رانه ووتې، په دې کار سخته خجالته شوم او خپل روزونکي ته مې وویل: نه غواړم د دوه سوه مترو ځغاستې په هغې سیالۍ کې برخه واخلم چې یو ساعت وروسته پیلېږي، خو هغه راته وویل: ښه نو څه شی وشو چې پښې دې ووتې؟ را وایې خله، بیا یې په پښو کړه او په ځغاسته کې برخه واخله!

**پوښتنه:**

داسې به ووایو چې ته خپلو اهدافو، ابتکاراتو او ارمانونو ته د رسېدو پر لاره یې او مخې ته دې یو خنډ راغی، نو دا مهال به څه وکړې؟!
ایا را پورته به شې، له خپلو جامو به ګردونه وڅنډې او خپله لاره به پوره کړې او که نه په خپل ځای کې به کراري کېنې؟!
زه باور لرم چې لومړنی ځواب غوره کوې، ځکه زه دې پر ځواک او د الله تعالی په مرسته لوړتیا ته د رسېدا پر وړتیا باور لرم!

## تر غرونو هم پیاوړی شه!

ستر امام، علامه ابن القیم رحمه الله فرمایي:
«که سړی یوه غره ته مخامخ ودرېږي او د لرې کولو اراده يې وکړي، نو لرې کولای يې شي.»
امیر المؤمنین علي رضي الله عنه فرمایي:
«څوک چې د يوه شي ترلاسه کولو هڅه وکړي، همغه شی یا له هغه پرته بل شی ترلاسه کوي.»

## هیڅکله ماتې مه منه!

«سویټ مارډن» د نیو هامپشایر ښار په یوه وروسته پاتې کلي کې وزېږېد، دری کلن و چې مور يې وفات شوه او چې د اوو کالو شو، پلار يې وفات شو.
پالونکي يې سمدستي پر کار وګوماره، څه موده د نیو همپشایر په ډېرو کلیوالو کورنیو کې مزدور و، کورونه به يې جارو کول، نجاري به يې کوله او په پخلنځیو کې به يې پخلی کاوه.
له کومې کورنۍ سره چې يې کار کاوه، هغوی به ډېر بد چلند ورسره کاوه، هغه به تل له ورځ له یوه ځایه بل ځای ته ډبرې انتقالولې تر دې چې لاسونه به يې وینې شول او د شپې به په جامو مینځلو او کور پاکولو کې مصروفېده، تر دې چې ګوتې به يې وپړسېدې. د کورنۍ مشر به په ډرو او سوک او څپېړو واهه او وږی تږی به يې ساته.
هغه پوره یو کال د دې شریر کشیش او د هغې د غوسه ناکې ښځې تر لاس لاندې تېر کړ، له لوږې به سخت خوږېده، خو هغوی به بیا هم مجبوراوه چې په زړې او سقوط ته نږدې کلیسا کې ساعتونه لمونځ وکړي. کشیش او ښځې به يې هره ورځ مارډن خورا سخت واهه، هغه وايي، یوه ورځ څکه له وهلو بچ پاتې شوم چې ښځې او مېړه زما د

د ماردن ځواني په تیارو کې تېره شوه، په دې موده کې یې کومه جریده یا مجله ترلاسه نه کړه چې مطالعه یې کړي، نه یې تر پنځوسو د ډېرو کسانو ډله ولیده، نه یې کوم کتابتون ولید او نه له دې خبر و چې ښار څه ډول دی، خو له دې سره سره یې له مطالعې سره مینه درلوده.

یوه ورځ یې د یوه پټي په ډېره کې کتاب وموند، دې کتاب یې د ژوند بڼه بدله کړه، نوموړی کتاب یوه سکاټلنډي ډاکټر او لیکوال «صمویل سمایلز» لیکلی و او «پر ځان باور» نومېده. په دې کتاب چې په (۱۸۵۹) میلادي کال چاپ شوی و، د هغو ځوانانو کیسې لیکل شوې وې چې خانونه یې له سختو شرایطو ژغورلي او خپلو هیلو او ارمانونو ته رسېدلي وو، ځکه دې ټولو ځوانانو پر ځان او خپلو هیلو باور درلود. د هغې پېړۍ تر پایه د نوموړي کتاب شاوخوا دوه نیم لکه نسخې پلورل شوې وې!

پر خپل ځان د باور صفت پر ماردن ژور اغېز وکړ، له همدې امله په اوولس کلنۍ د خپل بادار له کوره وتښتېد او د زده کړو ترلاسه کولو هڅه یې پیل کړه. د ورځې به یې ساعتونه په مختلفو هوټلونو کې د خدمتګار په توګه کار کاوه ترڅو له دې لارې خپل مالي حالت ښه کړي. د شپې تر ناوخته به یې خپل درسونه یادول چې علمي سویه یې پوره شي او د خپلو همدې هڅو په برکت لومړی د لندن اکاډیمۍ، بیا د بوسټن پوهنتون، وروسته د هارورډ پوهنتون طب پوهنځي او په پای کې د بوسټن پوهنتون د حقوقو پوهنځي ته داخل شو. خپل وروستي دوه لیسانسه یې په یوه وخت په (۱۸۸۲) میلادي کال کې واخیستل.

بیا یې خپل شخصي کاروبار پیل کړ، خوړنځي او کافي شاپونه یې پرانیستل، ځمکې او هوټلونه یې وپېرل او د «بریا» په نوم مجله یې تاسیس کړه.

ماردن وپتېیله چې باید د امریکې «صمویل سمایلز» شي، نو پر ځان د باور پیدا کولو او لویو اهدافو او ارمانونو ته رسېدو په اړه یې لسګونه کتابونه ولیکل او له دې لارې یې ډېرې پیسې وګټلې، په داسې حال کې

## ۱۵۸ پرېکنده گوزار!

محمد علي کلای یو وړوکی هلک و چې له توکمیز تعصب نه ډک یوه ښار کې اوسېده، د هغه دا ارمان و چې په سوک وهنه کې د نړۍ تر ټولو پیاوړی قهرمان شي. خلکو به یې په دې خبرې پورې خندل، خو هغه خپلو نه ستړي کېدونکو هڅو ته دوام ورکړ، تر دې چې مشهور سوک وهونکي «جورج فورمان» ته یې د مسابقې چیلنج ورکړ. «جورج فورمان» هغه څوک و چې ټول خلک به ترې وېرېدل، څکه گوزار یې د اس تر گوزاره هم پیاوړی و. سره له دې چې محمد علي کلای له هغه سره له مسابقې کولو سخت وېرېده، خو بیا یې هم چیلنج ورکړ او مسابقه یې ورسره وکړه. کلای ماتې وخوړه، څکه فورمان ډېر گوزارونه ورکړل، دولس گوزاره یې یوازې پر مخ او یو گوزار یې پر ژامه ورکړی و، ځنگل یې هم مات شوی و او بیا په ډېر بد حالت کې روغتون ته یووړل شو.

تر رغېدا وروسته ورته خلکو مشوره ورکړه چې نورې مسابقې ونه کړي، خو ده وکولای شول چې بیا خلې مسابقه وکړي، نه یوازې دا بلکې پرېکړه یې وکړه چې د دویم ځل لپاره له جورج فورمان سره مسابقه وکړي. کله چې فورمان له دې پرېکړې خبر شو، خلکو ته یې وویل: د دې سړي د لیدو ډېره تلوسه به لرۍ، څکه دا به یې وروستی ځل وي چې وینئ یې، ده له لومړنۍ مسابقې پند وانخیست، نو خدای پامانې ورسره وکړئ، څکه زه مو ترې پوره خلاصوم!

کله چې مسابقه پیل شوه، کلای غوښتل فورمان ته داسې وښیي چې که څه هم چې گوزارونه یې پیاوړي دي، خو پر ده کوم اغېز نه کوي. تر دې وړاندې بل هېڅ سوک وهونکی د فورمان پر وړاندې تر دوه درېیو پړاوونو ډېر مقاومت نه و کړی، خو کلای یې تر یوولسو پړاوونو مخې ته ولاړ و. په پای کې یې فورمان ته یو پرېکنده گوزار ورکړ چې له امله یې فورمان مړ شو. دا تر هغې وروسته چې فورمان کلای ته پرله پسې څو پیاوړي گوزارونه ورکړل چې له امله یې کلای د ډېرې مودې لپاره په

روغتون کې بستر شو.

کلای بیا ورغېد، هڅه یې وکړه او وتوانېد چې مسابقو ته تیار شي. بیا یې خپل اسلام راوړل ښکار کړل او خلکو ته به یې ویل: د الله تعالی په فضل او بیا د خپلو هڅو، مبارزو، تېینګار، پر ځان باورۍ، زړورتیا او ارمانونو په برکت وتوانېدم چې خپل اهداف ترلاسه کړم!

- هغو خبرو ته هېڅکله غوږ مه ږده چې روحیه دې وژني، د ماتې تخم پکې کري او تر کار پیلولو مخکې د ماتې احساس درکوي. هغوی پرېږده چې خپل کار کوي، ته خپل ارمان پسې شه، داسې وبوله چې په لاره کې دې راتلونکی هر خنډ به پرله پسې وروکی او په پای کې له منځه ولاړ شي او پر دې هم باور ولره چې هره بریا به دې پرله پسې غځېږي تر دې چې د الله تعالی په مرسته به په رېښتینې توګه د پوره بریا څېره ووینې!

## ۱۵۹ پرېږده چې اوښکې دې وبهېږي!

- هغه سترګه چې نه ژاړي، په حقیقت کې هېڅ شی نه شي لیدلی.
- هېڅکله نه شې کولای چې د پرېشانۍ مرغۍ پر خپل سر له کېناستو منعه کړې، خو دا دې په وس پوره ده چې د چېښدو او شور ماشور مخنیوی یې وکړې.
- انسان چې څومره پورته کېږي، په شاوخوا کې یې وریځې او دردونه زیاتېږي.

## ۱۶۰ د لړې له شتون سره سره تېرېدل!

کله چې فلورانس چادویک مخامخ لړې نظر واچاوه، نو له لړې پرته یې بل څه تر سترګو نشول، بدن یې پوره بې حسه شوی و، څکه پرله پسې لس ساعته یې په سمندر کې لمبلي وو. هغې غوښتل د کاتالینا له کاناله تر تېرېدو وروسته ځان د کلیفورنیا ساحل ته ورسوي.

د دې ورځې په سبا سمندر د واورې د حمام په خبر ښکارېده، لږه دومره ډېره وه چې هغې ژغورونکې کښتۍ هم نه شوای لیدای. شارک ماهیان به یې خوا ته را روان وو، خو هغې به د اتومات تومانچې په مرسته له ځانه لرې شړل. د سمندر یخني ساعت په ساعت زیاتېده، خو هغې په زړورتیا سره مقاومت کاوه، دا صحنه میلیونونو خلکو د تلویزیون پر پرده ننداره کوله.

فلورانس ته په نږدې کښتۍ کې یې مور او روزونکې سپاره وو، هغوی به هڅوله او ورته ویې ویل چې خپل هدف ته ډېره نږدې شوې، خو فلورانس له پنډې لړې پرته بل هېڅ شی نه شوای لیدای. هغوی دوا‌ړو پرله پسې هڅوله چې له مسابقې لاس وانخلي، خو همدا چې خپل هدف ته د نیم میل په اندازه نږدې شوه، له ژغورونکو یې وغوښتل چې له اوبو یې را وباسي.

فلورانس په خپله هڅه کې ناکامه شوه، د خپل یخ وهلي بدن په تودولو یې پیل وکړ او بیا یې یوه خبریال ته وویل: زه خپل ځان نه ملامتوم، ځکه که مې خمکه لیدلې وای، خپل کار مې پای ته رساوه. زه ستړیا او یخني د خپلې ماتې لامل نه بولم، بلکې دا پنډې لړې وې چې د خپل هدف له لیدو یې منعه کړې وم!

فلورانس دوه میاشتې وروسته بیا هڅه وکړه، سره له دې چې دا ځل هم په همغه اندازه پنډې لړې وې، خو دا ځل یې په داسې حال کې لمبا پیل کړه چې پر ځان یې پوره باور درلود او هدف یې روښانه و. خپل هدف یې په خپل ذهن کې تصور کړی و او داسې یې وانګېرله چې تر دې لړې هغه خوا پر وچه ځمکه ولاړه ده.

هو، همدا پر ځان باور او د هدف روښانتیا وه چې دا ځل یې فلورانس په خپله هڅه کې بریالۍ کړه او په دې توګه لومړنۍ هغه ښځه شوه چې تر دوو ساعتونو په کمه موده کې د کاتالینا له کاناله تېره شوه. په داسې حال کې چې تر دې مخکې سړي په پوره دوه ساعتونو کې له دې کاناله تېر شوي وو!

- په پوره دقت سره خپل هدف روښانه کړه او ټولې همه لارې چارې ولیکه چې د الله تعالی په مرسته دې خپل هدف ته رسوي. کله چې ناکامه شوې، بیا ځلې هڅه پیل کړه او هیڅکله له مبارزې لاس مه اخله. تر ټولو مهمه خبره دا ده چې حمله پاملرنه پر خپل هدف متمرکزه او په خپل ذهن کې یې تصور کړې او ځان په هغو سطحې پېښو کې ښکېل نه کړې چې پاملرنه دې تیت پرک کوي.

## ۱۶۱ د چا په هیلو پورې مه خانده!

دا کیسه هغه مهال په اندلس کې را پېښه شوې چې د مسلمانانو په واک کې و. یو مزدور و، هره ورځ به یې د خپل خره په مرسته د خلکو مالونه د هغوی تر کورونو رسول. یوه ورځ یې له خپلو ملګرو وپوښتل: غواړئ په راتلونکې کې څه شی شئ؟

ملګرو یې یوه هم ځواب ور نه کړ، نو ده د ځان په اړه وویل: هیله لرم چې د اندلس حاکم شم!

ټولو په حیرانتیا ور غبرګه کړه: څه شی، د اندلس حاکم؟!

مزدور وویل: هو! بیا یې د خپل خنګ له ملګري وپوښتل: کله چې د اندلس حاکم شوم، څه خدمت درته وکړم؟

هغه وویل: کله چې د اندلس حاکم شوې، هیله ده چې د خپل خره په شا پورې مې وتړې او بیا دې لښکر ته ووایې چې په ډرو مې ووهي او ووایي: دا درواغجن و، دا درواغجن و!

مزدور وویل: سمه ده، همداسې به درسره وکړم!

بیا یې د خپل ښي لاس ته ولاړ ملګري نه وپوښتل: ته څه هیله لرې؟

هغه وویل: کله چې د اندلس حاکم شوې، هیله ده چې یو لوی قصر راته جوړ کړې، سپین اسونه راکړې او یوه ښکلې پېغله راته په نکاح کړې!

مزدور د خپلو ارمانونو په شمېرلو لګیا شو، ورځې تېرېدې او هغه یو په

بل بسي خپل اهداف ترلاسه کول، تر دې چې خپل تر ټولو لوی ارمان نه ورسېد، د اندلس حاکم شو، بلکې داسې حاکم شو چې د الله تعالی په مرسته يې د اندلس ځمکه لا نوره پراخه کړه، فتحې يې ترلاسه کړې او د ده پر مهال جوماتونه لا ډېر او پراخ شول. دا حاکم حاجب منصور نومېده!

د ډېرو ورځو او کلونو تر تېرېدو وروسته حاجب منصور خپل وزير ته امر وکړ چې د ده هغه دوه ملګري را پیدا او ده ته يې راولي. وزير هغوی دواړه په بازار کې وموندل، ويې ليدل چې دواړه د تېر په څېر پر خپلو خرو د خلکو مالونو وړي راوړي.

کله چې يې د حاجب منصور دربار ته راوستل، خپل لومړني ملګري ته يې وويل: در په ياد دي چې د مزدورۍ په هغو سختو ورځو کې دې راته څه هيله کړې وه؟

سړي په وارخطايي وويل: زه... زه... نه نه ما هسې ټوکې کولې، د هغو خبرو وخت تېر شوی!

منصور وويل: نه، وخت يې نه دی تېر شوی!

بيا يې خپل وزير ته وويل: پر خپل خره يې سپور کړئ، په ډُرو يې ووهئ او ووايئ: دا دروغجن دی، دا درواغجن دی!

بيا يې خپل دويم ملګري ته وويل: ښه، تا څه هيله درلوده؟

هغه وويل: له تا نه مې لوی قصر، سپين اسونه او ښکلې ښځې غوښتې وې!

منصور خپل وزير ته وويل: د ده هيله ور پوره کړئ!

وزير يې ترې وپوښتل: فکر کوم له خپل لومړني ملګري سره دې د دويم په پرتله ښه چلند ونه کړ؟!

منصور وويل: دا د دې لپاره ترڅو پوه شي چې الله تعالی پر هر څه قادر دی!

- پوهېږې، دا پر الله تعالی د ښه ګومان پايله وه چې يو بېوزله مزدور يې د اندلس حاکم کړ!

- الله تعالی په یوه قدسي حدیث کې فرمایي:
﴿أَنَا عِنْدَ ظَنِّ عَبْدِي بِي، فَلْيَظُنَّ عَبْدِي بِي مَا شَاءَ﴾
«زه د خپل بنده گومان ته گورم، نو د بنده چې مې څنګه خوښه وي، همغسې گومان دې راباندې وکړي.»
- خپل ځان ته په کمه سترگه مه گوره او تر هغې چې پر خپل رب دې توکل درلود، له اسبابو دې کار اخیست، خیال پلو دې نه پخاوه او ځای پر ځای ناست نه وې، نو خپل ارمانونه بې ارزښته او نه پوره کېدونکي مه بوله!

## ۱۶۲ مېترو!

یو ډنگر او کُند ذهنه کوچنی هلک د یوې زړې مېټرو (تر ځمکې لاندې اورگاډي) له یوې ستنې سره ولاړ و، پنسلونه یې پلورل او سوال به یې هم کاوه. یو سوداگر پرې تېرېده، نو په خورجین کې یې ورته یو ډالر واچاوه او بیا په بېړه مېټرو ته پورته شو. تر یوې شیبې فکر کولو وروسته بېرته له مېټرو را کوز شو او د ماشوم خوا ته ورغی، څو دانې پنسلونه یې ترې پورته کړل او له بښنې په ډکه لهجه یې ورته وویل: له ما نه هېر شوي وو چې د پیسو په بدل کې مې درنه پنسلونه پورته کړي وای!
بیا یې زیاته کړه: ته زما په څېر یو سوداگر سړی یې. د خرڅون لپاره مال هم لرې او بیه یې هم خورا مناسبه ده!
دا یې وویل او بیا روان شو او دویم اورگاډي ته وخوت.
تر دې پېښې کلونه وروسته په یوه عمومي غونډه کې د عصري او شیک توکو یوه پلورونکي نوموړي سوداگر ته خپل توکي وړاندې کړل او خان یې داسې ور وپېژاند: ښایي ته به ما نه پېژنې او ما ته دې هم نوم نه دی معلوم، خو ترڅو چې ژوندی یم نه دې هېروم. ته همغه سړی یې چې زه دې د خپل نفس درناوي ته متوجه کړم. ما له ډېر وخت راهیسې پنسلونه پلورل او سوال مې کاوه تر دې چې ته راغلې او راته دې وویل:

ته هم یو سوداګر یې!

- وینې چې زموږ له ډلې څومره انسانان لا هم سوال کوي، په داسې حال کې چې د بریا سامان ورسره دی. ته کېدای شي د دې سوالګر هومره بختور نه وې چې یو څوک راشي او درته ووایي چې ته زما پر وړاندې ډېر ارزښت لرې. ښه نو، بخت ته انتظار کوې او که نه په پوره باور سره خپل پنسلونه پلورې؟

واک ستا په لاس کې دی، که ته په خپله خپل قدر ونه کړې او پر خپلو وړتیاوو باور ونه لرې، نو هغه کس ته به دې انتظار اوږد شي چې کېدای شي راشي یا را نه شي. همدا اوس خپل داخل ته نظر وکړه او وګوره چې ته څومره په زړه پورې او د بریا وړ یې او دا چې ستا او بریالیو خلکو ترمنځ هېڅ توپیر نه شته.

- یوه حکیم یو ځل وویل: «ډېر خلک تر هغه ځایه ډېر مخکې ولاړل چې ګومان یې کړی و هلته د رسېدو توان لري، ځکه یوه بل کس ګومان کړی و چې دوی هلته رسېدای شي.»

## ۱۶۳ لاره ستونزمنه نه ده، ورځه پرې!

- که پر ژوند څه شی ور زیات نه کړې، ته به پرې ور زیات شې. (مصطفی صادق الرافعي)
- تر ټولو ګټور قدم اخیستو مهمه دا ده چې پر سم مسیر قدم واخیستل شي.
- ته په خپله هغه بدلون اوسه چې غواړې په نړۍ کې یې ووینې. (ګاندي)
- که دا دې په وس پوره نه وه چې د اسمان ستوری شې، نو هڅه وکړه چې د کور ډیوه شې. (ت. الیوت)
- سمدستي ناکامي دا ده چې له هڅې لاس واخلې. (البرټ هوبارډ)
- ولې باید د نقاشۍ برس او رنګونه شم، په داسې حال کې چې

کولای شم هنرمند شم؟! (فریدریک فون شیلر)

- مخکې تر دې چې خپلې وړتیاوې او امکانات په کار واچوې، ښايي دا معلومه کړې چې دا وړتیاوې او امکانات څه شی دي؟ (مایکل جورډن)
- په همغه حالت او همغه ځای کې به پاتې یو چې اوس په کې یو، البته که له مخکې مو داسې انګېرلې وي!
- هر هغه څوک چې خپله لاره وپېژني او پرې روان شي، نو نړۍ یوې خوا ته کېږي او ده ته لاره پرېږدي چې تېر شي!

## ۱۶۲ خپل ارزښت مه کموه!

یوه ویناوال د یوې وینا پر مهال د (۵۰۰) ریالو نوټ پورته کړ او ویې ویل: دا څوک اخلي؟

ډېرو ناستو کسانو لاسونه پورته کړل. ویناوال وویل: ستاسې یوه کس ته یې ورکوم، خو وروسته تر دې چې دا کار وکړم... نوټ یې په خپل لاس کې وزبېښه او بیا یې له ناستو خلکو وپوښتل: اوس یې څوک اخلي؟

د لومړي ځل په څېر بیا هم همغه لاسونه پورته شول، ویناوال وویل: ښه ده او که دا کار مې وکړ... نوټ یې پر ځمکه ګوزار کړ او په خپلو بوټانو پرې وخوت او ښه یې وسولاوه، په داسې حال کې چې په خاورو ککړ و، پورته یې کړ او ویې پوښتل: اوس یې هم له تاسې څنې څوک اخلي؟

د درېیم ځل لپاره لاسونه پورته شول، ویناوال وویل: ښايي چې اوس مو یو ارزښتمن پند زده کړی وي او هغه دا چې ما چې پر دغه نوټ هر څه وکړل، تاسې یې بیا هم اخلئ، ځکه خپل ارزښت یې له لاسه نه دی ورکړی، دا بیا هم همغه (۵۰۰) رياله دي. موږ هم په خپل ژوند کې ډېر ځله پر ځمکه را پرېوځو، زبېښل کېږو او د خپلو پرېکړو یا هم د هغو شرايطو له امله چې پکې واقع یو، په شا تګ کوو او هغه مهال داسې احساسوو چې ګواکې هېڅ ارزښت نه لرو، نو له همدې امله که دا هر

څه کېږي، ښايي چې بيا هم خپل ارزښت له لاسه ور نه کړي، ځکه ته بېل شخصيت لرونکی يې. هڅه وکړه چې دا خبره هېڅکله هېره نه کړې!

- د تېرې ورځې د ارمانونو نهيليو ته اجازه مه ورکوه چې د سبا ورځې پر ارمانونو دې سيوری وغوړوي، ځکه ستا ارزښت هغه دی چې ته يې په خپله ټاکې، نو ځان ته دې تر ټولو غوره ارزښتونه وټاکه او په خپلو زورو کې د خپل هغه رېښتينې خبرې په لټه کې شه چې بايد همغسې واوسې. حتما به يې مومې او وياړ به پرې کوې، خو يوازې همدومره وکړه چې پورته شه او زېښناک ته مه تسليمېږه، ځکه تر هغې چې دې له نوي سره د هڅې له پيلولو لاس نه وي اخيستی، خپل ارزښت له لاسه نه ورکوې، که څه هم چې بيا بيا ماتې وخورې، خو کله چې پرله پسې ماتې ته په تسليمېدو سره خپل ارزښت د هغه نوټ په څېر را ټيټوې لکه يو ماشوم چې يې په خپلو لاسونو خيرې کوي او ارزښت يې له منځه وړي، نو دلته ده چې ستا هېڅ ارزښت نه پاتې کېږي، که څه هم چې يوه ورځ د پيسو يو روغ نوټ وې!

## ۱۶۵ را پرېوتل، خو بېرته پورته شول!

- د طبيعي علومو انګرېز عالم چارلز ډاروين په ښوونځي کې تر ټولو تمبل او لټ زده کوونکی و، تر دې چې پلار يې تل د همدې خبرې پېغور ورکاوه، رټه به يې او ورته به يې ويل: ډېر ژر به خپل ځان او خپلې کورنۍ ته لوی شرم راوړې!

ډاروين د اډينبره پوهنتون په طب پوهنځي کې پاتې راغی، کيمبرج پوهنتون ته ولاړ، هلته هم ناکامه شو او په طبيعي علومو کې يې نبوغ ښکاره نه شو تر دې چې په (۱۸۳۱) ميلادي کال کې په (بيګل) نومې کښتۍ کې پر يوه سفر ووت چې بيا وروسته

دا سفر په تاریخ کې د یوه مهم علمي سفر په توګه وپېژندل شو. ډاروین د همدې سفر پر مهال د خپلو څېړنو په پایله کې خپله د (ارتقاء) نظریه مطرح کړه.

- مشهور هسپانوی رسام پابلو پیکاسو په ښوونځي کې ډېر تمبل و، ځکه هغه به له رسم ویستو پرته بل هېڅ شی هم نه کول او ډېر کم به یې لیک او لوست کاوه. پلار یې په لس کلنۍ کې له ښوونځي ویوست او هغه خانګړی ښوونکی یې هم ترې ولاړ چې متوسطې ته د بریا کېدو په موخه یې ده ته ریاضي ور زده کوله، ځکه ده به ریاضي نه شوای زده کولای چې له امله یې ښوونکی نهیلی شو. وروسته یې د زړه تنګۍ له امله د هنرونو پوهنځی هم پرېښود او پرېکړه یې وکړه چې په مادرید او پاریس کې په خانګړې توګه رسامي زده کړي. همداسې یې وکړل، په رسامۍ زده کولو کې یې کلونه زیار ویوست او په دې توګه یې خپل نوم د نړۍ وال هنر پر اسمان د تل لپاره وځلاوه.
- سکاټلینډی انجینر جیمز واټ په ماشومتوب کې له نیم سري سخت ځورېده، هر وخت به یې نیم سر درد کاوه. واټ خورا بې زړه ماشوم و، ټولګیوالو به یې په ټولګي کې چلونه ورسره کول او وېراوه به یې. په خپلو درسونو کې خورا سست او تمبل و، خو کله چې دیارلس کلن شو، هندسې ته یې پاملرنه ډېره شوه او ښه پرمختګ یې پکې وکړ او له هغې وخته وروسته یې عقلي وړتیاوو لا نوره وده وکړه تر دې چې د بخار ماشین یې جوړ کړ، هغه چې وروسته یې د صنعتي انقلاب په را منځ ته کولو کې مرسته وکړه.

**پوښتنه:**

که دوی او دوی ته ورته نور لویان تر پرېوتو، ناکامېدو او ناروغۍ وروسته نه وای را پورته شوي، نو اوس به مو دا حیرانوونکي اختراعات چې د دوی په لاس را منځ ته شول او له شتو یې ګټه او خوند اخلو، په سترګو لیدلای؟!

## ۱۶۶ پر ځان باور ولره!

سلفسټر سټالون ته د هالیووډ تر پنځوسو ډېرو پروډیوسرانو ویلي وو چې ورتیا یې یوازې د یوه لیکوال په توګه وده کولای شي او دا چې هغه خپلو فیلمنامو ته د بازار موندنې په هڅو سره خپل وخت ضایع کوي، خو هغه پر خپلې ورتیا باور درلود، سره له دې چې د هالیووډ ټولو پروډیوسرانو هڅه وکړه ترڅو دې قانع کړي چې نوره څه هیله نه ده پاتې.

پروډیوسرانو چې یې کومه فیلمنامه رد کړې وه، هغه د «راکي» په نوم مشهورې نړۍ والې فلمي لړۍ د لومړني فیلم فیلمنامه وه، هغه چې سټالون ته یې پاموړ بریا په برخه کړه.

سلفسټر سټالون پر خپلې ورتیا او داخلي خواک باور درلود، هغو تنو نیوکو ته یې هېڅ پام ونه کړ چې دی یې یو ناکام لیکوال بللی و او نه یې پر هغو خبرو خپله حوصله له لاسه ورکړه چې د ده ورتیا ته پکې په کمه سترګه کتل شوي وو.

## ۱۶۷ غره ته ماتې ورکړه!

کله چې «ایډمونډ هیلاري» په لومړي ځل د ماونټ ایوریسټ غره څوکې ته د ختلو هڅه وکړه، بریالي نه شو او له غره نه د بېرته راکوزېدو پر مهال یې خپل درې ملګري تر شا مړه پرېښودل، خو له دې سره سره یې له خپلو پرله پسې هڅو لاس وانخیست او له همدې امله وه چې بریتانوي حکومت په تر ټولو لوړو دولتي مډالونو ونازاوه او د پارلمان پر وړاندې راڅرګندېدو بلنه یې ورکړه. کله چې پارلمان ته ننووت، ټول بې د درناوي په موخه ودرېدل او لاسونه یې ورته وپړکول. کله چې لږ وړاندې ولاړ، د ایوریسټ غره څوکې را څرول شوی عکس یې ولید، وېروونکې و، مخې ته یې ودرېد، خپل لاس یې موټی کړ او غره ته په خطاب کې بې

وویل: دا خل خو ته بریالی شوې، ته همغومره لوی یې چې همېشه باید وې، خو زه په پرله پسې هڅو ډېر لوی یم!

تاریخ راته وایي چې ایډمونډ هیلاري د (۱۹۵۳) میلادي کال د مئی میاشتې د یوې ورځې په پوره یوولس نیمو بجو تر خپلې دویم ځلي هڅې وروسته وتوانېد چې د ایوریسټ غره څوکې ته پورته شي او په دې توګه د نړۍ لومړنی هغه کس شو چې د ایوریسټ غره څوکې ته پورته شو.

ایا پر دې خبره دې باور راځي چې لوړوالي، د فشار ټیټوالي او تر صفر درجې لاندې یخنۍ ته یې ماتې ورکړه؟!

ایا باور دې راځي چې د واورې ښوېیدنې او دې وېروونکي غره ته د پورته کېدو خطر ته یې ماتې ورکړه؟!

دا د دقیق په نښه شوي هدف جلال او په ترلاسه کولو یې د ټینګار پایله وه!

## ۱۶۸ ماندېلا او ښکاره هیله!

نېلسن ماندېلا د سویلي افریقا د سپین پوستي حکومت په زندان کې پوره اووه ویشت کاله تعذیبونه، کړاوونه او سپکاوي وزغمل، خو بیا یې هم له خپلې هیلې او ارزښتونو دفاع کوله، ان په هغه وخت کې چې نورې نړۍ یې هڅو ته د شک په نظر کتل.

ماندېلا په دې باور و چې نژادي تبعیض یوه رټل شوې پدیده ده او ښایي چې سویلي افریقا یو داسې ملت وي چې د اتباعو ترمنځ یې مساوات موجود وي. په پای کې تر ډېرو کلونو وروسته ماندېلا ازاد او د هغه حکومت مشر شو چې دی یې بندي کړی و او په دې توګه په سویلي افریقا کې نژادي تبعیض له منځه ولاړ.

- خپلو هیلو او اصولو ته ژمن پاتې کېدل اسانه کار نه دی، سره له دې چې ښایي زموږ له ډلې ډېر لږ کسان د ماندېلا په څېر له

ازموینو سره مخ شوي وي، خو پر دې باید پوه شې چې ارزښت او شخصیت به دې همېشه له ازموینو او چیلنجونو سره کېږي.
که د داسې یوه الهام په لټه کې یې چې غوارې ارادې دې پیاوړې کړي، نو د ماندېلا هغه مبارزه او پر خپلو هیلو باور لرل در په زړه کړه چې د هغو لپاره یې سختۍ وګاللې.

## ۱٦۹ پیغامونو ته یې پاملرنه مه کوه!

نویو څېړنو ثابته کړې، هغه سلبي (منفي) پیغامونه چې لا شعوره ضمیر (پټ عقل) یې ترلاسه کوي؛ لومړی د فرد پر افکارو او باورونو او ترې وروسته د هغه پر سلوکو او کړنو خورا فعالې او خطرناکې اغېزې لري.
د بېلګې په توګه کله چې له مور نه یو تن دا سلبي پیغامونه ترلاسه کړي چې:

- ته له هېڅ غوره نه یې.
- امکان نه لري چې بریالی شې.
- فکر دې وروسته پاتې دی.
- ایا ته ګومان کوې چې تر نورو غوره یې؟
- ممکنه نه ده چې ارمانونه دې پوره شي.

نو غاړه ورته ږدي، باور پرې کوي او په دې سره یې دا سلبي پیغامونه لا شعوره ضمیر ته ننوځي او پکې خای پر ځای کېږي او په راتلونکې کې چې نوموړی تن د کوم کار کولو، زیار ویستلو، ابتکار کولو او غوره والي پر لور د قدم اخیستلو هڅه کوي، نوموړي سلبي پیغامونه یې په لا شعوره توګه ذهن ته راځي او له دې چارو لاس اخلي!
استاد عبدالدائم الکحیل وایي: ته باید داسې تصور وکړې چې دماغ دې د دقیقو هندسي دستګاوو یوه داسې مجموعه ده چې له ټاکلې سیستم سره سم کار کوي. ته هغه څوک یې چې دا سیستم به اداره کوي او دا د بریا کیلي ده، خو که دا حقیقت درک نه کړې، نو دماغ به

دې د ملګرو، کورنۍ، ټولنې او په شاوخوا کې موجودو مؤثراتو له لوري اداره کېږي. په دې توګه به په یوه انفعالي انسان بدل شې، داسې چې د خپل ځان او خپلو احساساتو د کنترولولو واک به نه لرې.

## ۱۷۰ خوښه دې چې باور پرې کوې او که نه!

یوهان وایي: ماشوم له کوچنیوالي تر بلوغه تر (۱۸۰۰۰) ډېر سلبي پیغامونه ترلاسه کوي او په لا شعوره ضمیر کې یې ذخیره کېږي چې بیا وروسته د یوه لالهانده شخصیت د غیر ارادي کړنو په شکل را منځ ته کېږي!

پوهېږې، څومره ډېر ماشومان یوازې له دې امله ناکامه شوي چې پلرونو یې په ماشومتوب کې ورته ویلي «ای ناکامه»، ځکه په ازموینو کې به یې ښې نمرې نه وې ترلاسه کړې؟

څومره ډېر معذوران یوازې له دې امله له ماتې سره مخ شوي چې ټولنې په کمه سترګه ورته کتلي او د ناکامۍ حکم یې پرې کړی، ځکه هغوی معذوران وو؟

څومره ډېر بېوزله نابغه ګان یوازې له دې امله ناکامه شوي چې هېچا یې د افکارو پر ارزښت باور نه درلود او ده ته یې داسې سلبي پیغامونه استولي چې دی یې له ناکامۍ سره مخ کړی؟!

**پوښتنه:**

ایا فکر نه کوئ چې بدفالان او بد انګېرونکي باید له دې امله محاکمه شي چې زموږ د نسلونو زړونو ته سلبي پیغامونه ورکوزوي؟!

- مارګریټ تاچر وایي: «خلک داسې ګومان کوي چې د غرونو لوړې څوکې په کافي اندازه پراخه ساحه نه لري. دوی ته په دې اړه فکر کول خوند ورکوي چې ګواکې هره لوړه څوکه د ایوریسټ غره وېروونکې لوړه څوکه ده، خو زه دوی ته وایم: پر هره لوړه څوکه د ډېرو کسانو د ځایولو لپاره پراخه ساحه شته.»

## ۱۷۰ بلې ډیوې!

✓ ښایي چې تقوا خپله کړې، ځکه دا د لارې غوره توښه او تر ټولو ښه وصیت دی. الله تعالی فرمایي:

﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا ۝ وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ﴾

«څوک چې له الله تعالی څخه وویرېږي، هغه به ورته له هرې ستونزې نه د خلاصون لاره ور وښیي او له داسې لارو به رزق ورکړي چې ده به یې په اړه ګومان هم نه وي کړی.»

✓ پر تېرو پېښو اوښکې مه تویوه، ځکه هغوی چې پر خپلې بدمرغۍ اوښکې تویوي، نړۍ ورته نه خاندي او هغوی چې د نورو پر دردونو خاندي، زمانه پرې رحم نه کوي.

✓ تویو شویو شېدو ته مه ژاړه، بلکې ښه ډېره خواري وکړه چې د تویو شویو شېدو پر ځای نورې شېدې پیدا کړې.

✓ ځان په نېک پالۍ عادت کړه، ځکه نېک پاله په توره شپه کې د اسمان پر لور سترګې پورته کوي او د سپوږمۍ مینه ویني، خو بد پاله چې د اسمان پر لور وګوري، یوازې تورې تیارې ویني.

✓ هڅه وکړه چې تر اوسني حالته لا ډېر نېک پاله واوسې، ځکه نېک پاله د نورو مینه ځان ته را کاږي، خو بد پاله یې له ځانه شړي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم به نېک پالي خوښوله، ځکه نېک پالي پر الله تعالی د ښه او بد پالي د بدګومان معنا لري او دا خبره هم معلومه ده چې مؤمن باید په هر حال کې پر الله تعالی ښه ګومان ولري.

✓ هغه خلک در په یاد کړه چې په سختو ورځو کې یې مرسته درسره کړې، هغوی چې د را پرېوتو پر مهال یې لاس در اوږد کړی، هغوی چې دې په خوا کې ودرېدل، هغه مهال چې ټولې دنیا درته شا اړولې او هغوی چې له یوازې والي را وویستې، هغه مهال چې نور خلک درنه بېل شوي وو.

داسې مه وایه چې د هغوی مننه دې کړې او ښه دې ستایلي دي.

- ✓ بیا یې مننه وکړه او ترڅو چې دې په وس پوره وي، ښه یې وایه او ښه ورسره کوه.
- ✓ کله چې تیارې خورې شي، د ډیوو بلوونکو له ډلې شه، نه د هغو خلکو له ډلې چې ډیوې په کاڼو ولي او کله چې سهار شي، د هغو خلکو له ډلې شه چې د ورځې روښنايي ته ښه راغلاست وايي، نه د هغو تمبلانو له ډلې چې په لمر راخاته هم نه پوهېږي.
- ✓ کله چې د غره څوکې ته نږدې شوې، نو غرور ته اجازه مه ورکوه چې لاره درځخه ورکه کړي او په دې وهم کې باید پرې نه وځې چې کوم خلک چې لاندې ولاړ دي، خورا ټیټ قدې دي. الله تعالی فرمايي:

﴿وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا ۖ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ﴾

،له خلکو سره په مخ اړولو خبرې مه کوه او پر ځمکه په کبر سره مه ګرځه، الله تعالی پر ځان مېين او وياړ ښکاره کوونکي خلک نه خوښوي.،

- ✓ نهیلي ته اجازه مه ورکوه چې زړه ته دې در ننوځي، ځکه نهیلي د انسان سترګې پټوي چې بیا پرانیستې دروازې او راغښدلي لاسونه نه شي لیدای. الله تعالی فرمايي:

﴿قُلْ يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا مِن رَّحْمَةِ اللَّهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا ۚ إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ﴾

،ای محمده! زما له لوري زما هغو بنده ګانو ته چې د ګناهونو په ترسره کولو سره یې پر خپلو ځانونو ظلم کړی ووایه: د الله تعالی له رحمته مه نهيلي کېږئ، الله تعالی ټول ګناهونه ښښي، مغه ښښونکی او مهربان دی.،

- ✓ هېڅکله ناکامۍ ته غاړه مه ږده او کله چې دې دروازه در وټکوي، نو مه یې ورته پرانیزه. څومره ډېر چې یې ګوزارونه وزغمې، پوه شه

چې بریا راتلونکې ده، نو زېږی ومنه، خوښ شه او نفس دې د ابتکار او د ارمانونو د ناڅاپي پوره کېدو د احساس له خونده مه محرومو.
ته د بریا ور یې، نو له همدا اوسه پیل وکړه!



## پای

گرانه لوستونکیه!

تر دې ښکلي سفر وروسته چې دا کتاب دې پکې ملگری و او ما یې توري یوازې ستا لپاره لیکلي وو، غواړم درته ووایم چې:

- زه پر دې باور لرم چې ته د بریا ترلاسه کولو او د خپل داخل له ژورو د پټې خزانې راویستو توان لرې.
- زه پر دې باور لرم چې ته هم د دې تولو لویانو په څېر چې مبارزو، هڅو، بریاوو او لوړتیاوو ته یې حیرانه پاتې شوې، یو لوی انسان یې.
- زه پر دې باور لرم چې ته د دې وړتیا لرې چې د بریا کیسه دې د دوی له کیسو سره یو ځای ولیکل شي، څکه زه باور لرم چې د الله تعالی په مرسته هر څند او ستونزه له خپلې لارې لرې کولای شې!

گرانه لوستونکیه!

ته اوس د یوه دوه لارې پر سر ولاړ یې، نو یا به را پورته شې او له خپل روح نه به د ناکامۍ دوړې وڅنډې او په پیاوړې ارادې سره به مخ پر وړاندې قدم واخلې او یا به ځای پر ځای پاتې شې او نړۍ به همداسې روانه وي!

نو که لومړنۍ لاره دې غوره کړه، ژمنه درسره کوم چې یوه ورځ به دې له لویانو سره د بریا کیسه ولیکم، څکه د دې وړ یې او که دویمه لاره دې غوره کړه، نو هیله درڅخه کوم چې کتاب بېرته وسپارې او خپلې پیسې ترلاسه کړې، څکه تا ترې اصلاً هېڅ گټه نه ده اخیستې. یا یې هغه چا

ه چې پوهېږې له ناکامۍ سره ملګرتیا یې نه خوښېږي.

ته ډاډ ه ستا ده، خو دا چې زه دې پر وړتیا، بریا او ایجابي باورونو

اوس و باور پرې لرم، نو بیا به هم ستا د بریا کیسې ته سترګې په

ډاډه

لاره

پر ـم باید پوه شې چې ټولې نړۍ همدا اوس درته خپلې وزرې

پر ي، څکه تا د خپل هدف مسیر پېژندلی.

نر شه او شا ته مه ګوره!

سلوی العضیدان